## فهرست

## ( د تجوید د علم تاریخ ، او اهمیت )

**تاریخ** : لومړني کسان چې د تجوید قاعدې یې ترتیب کړې د تالیف په لومړی عصر کې د لغتو او قراءة امامان وه ، د ځینو په آند لومړی کس خلیل بن احمد فراهیدي وو چې نوموړی کار یې تر سره کړئ ، د ځینو په آند لومړی کس ابوالاسود الدولي وو ، چا بیا ویلي دي ابوعبید القاسم بن سلام هغه وخت نوموړي قاعدې ترتیب کړې چې اړتیا ورته پیداسوه ، کله چې اسلامي لښکري زیاتي بریاوي ترلاسه کړې د اسلام بیرغونه پر ډیرو سیمو ورپېدل د عربو ژبې د عجمو سره ګډې سوې ډېر عجم د اسلام په دین مشرف سوه د قرانکریم سره یې مینه وه ، ډېر عجم د قرانکریم په زده کړه بوخت سوه خو عجمي ژبه د عربي ژبې څخه ډېره بېله وه په پایله کې عجمو نه سوای کولای چې په سمه توګه د قرانکریم تلفظ وکړي ، د دې وېره پیدا سوه چې په قرانکریم کې به اختلاط ، اختلاف او تحریف رامنځته سي نو ځکه علماء دې ته اړسوه چې داسې قاعدې ترتیب کړي چې په مټ یې ټول قومونه وکړای سي چې د قرآنکریم صحیح تلفظ وکړي ، لوموړی کس یې چې په دې علم کې یوه قصیده منظومه کړه ابي مزاحم الخاقاني وو ، دغه کار یې د هجري سنې د دریمې پیړۍ په پای کې ترسره کړئ او دی په ۳۲۵ هـ سنه کې وفات سو.

**دتجوید د علم اهمیت** : د تجوید اهمیت د قرآن کریم داسې لوستل چې له غلطیو مخنیوی وسي یعني د تجوید د احکامو مراعاتول ، چې د تجوید د احکامو او د حروفو د تلفظ نه مراعاتولو ته لحن وایي چې وروسته به ذکر سي....

## ( د تجوید د علم ثبوت )

د تجوید علم په دغه څلورو مشهورو د لیلو سره ثابت سوی دی چې هغه دا دي ، لکه :- ( آیات ، حدیث ، اجماع ، قیاس ) .

**۱: ایات**: الله سبحانهٔ و تعالیٰ په سورة المزمل کې فرمایي : وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلاً المزمل۴ ژباړه : او قرآن ښه په کراره کراره لوله ، چې تفسر یې صاف ویل دي بیضاوي رحمة الله فرمایي :- اَیْ جَوِّدِالْقُرْآنَ تَجْوِيْدًا ( کلام الله په تجوید سره ښائسته کړی ) او څلورم راشد خلیفه حضرت علي رضي اللهُ عنهُ فرمایي : الترتیل هو تجوید الحروف و معرفة الوقوف ژباړه :- یعني ترتیل نوم دی ، معنٰی د تجوید حروف او د وقفو د ځایو پیژندل دي ، چې انشاالله مخکې به راسي .

**۲ حدیث**: رسوالله ﷺ فرمایي:- * رُبَّ قَارِئٍ لِلْقُرْآنِ وَالْقُرْآنُ يَلْعَنُهُ * ( یعني ډېر داسې کسان شتون لري کوم وخت چې دوی تلاوت د قرآن کوي ، نو قرآن پرې لعنت ویونکی وي ) ، ملا علي قاري رحمةالله فرمایي :- چې په د غه حدیث کې ۳ ډوله کسان شامل دي ۱:- بې عمله ۲:- تحریف کوونکي ۳:- غلط ویوونکي .

**۳ اجماع**: ملاعلي رحمةالله فرمایي : هٰذَا الْعِلْمُ لَاخِلَافَ فِيْ اَنَّهُ فَرْضٌ كِفَايَةٌ وَالْعَمَلُ بِهِ فَرْضٌ عَيْنٌ عَلٰى صَاحِبِ كُلِّ قِرَآءَةٍ وَرِوَايَةٍ وَلَوْكَانَتِ الْقِرَآءَةُسُنَّةً .

ژباړه : په دې کې د هیڅا اختلاف او شخړه نسته چې د علم تجوید قاعدې فرض کفایي دي او د هغه موافق عمل کول په قرائت او روایت کې فرض عین دي ، که څه هم خپله تلاوت کول مسنون او مستحب دی ، فرض او واجب نه دئ.

**۴ قیاس**: په علم تجوید سره د تلاوت ښایست دوه چنده کیږی نو ځکه په قیاس سره هم ثابت سو علم التجوید .

**یادونه**: علم تجوید همدا ډول په ( فقه ، اقوال علماء ) سره هم ثابت دی .

**۵ اقوال دعلمآء:** امام علامه شمس الدين(رح) په المقدمه الجذريه کښي فرمايي : وَالْاَخْذُبالتَجْوِيْدِحَتْمُ لَازِمُ , مَنْ لَمْ يُجَوِدِ الْقُرْاٰنَ اثِمُ .
ژباړه : قرآن کريم د تجويد موافق ادا کول ډېـر ضروري ، او لازم دي او هغه څوک چـي قران کريم په تجويد سره و نـه وايـي هـغـه ګـنـاهـګـاره دی .
**فقه :** فقهاء کرامو فرمايلي دي چي قران کريم په تجويد سره ويل واجب او ډېر ضروري دی ، ځکه په غلط ويـلـو سره بعضي وخـت معنٰی داسي بـدليږي چـي پـه هـغـه سره لمـونـځ فـاسـديـږي .

## ( د تجويد د علم لغوي او صطلاحي معنی ، موضوع ، غرض )

**۱ : لغوي او اصطلاحي معنی:**-تجويد په لغات کي ( تَحْسِيْنُ شَيْئٍ بِالشَّيْئِ ) يعني د يوه شي ښايسته کول په بل شي باندي ، چي يو شئ قرآن الکريم دی ، او بل شئ تجويد دی ، مطلب د قرآن الکريم ښايسته کول په تجويد سره .

**او تجويد په اصطلاح کي:** ( هُوَعِلْمٌ يُبْحَثُ فِيْهِ عَنْ مَخَارِجِ الْحُرُوْفِ وَصِفَاتِهَا ) يعني دا يو علم دی چي پـه ده کي بـحـث د حروفو د مخارجو او صفتونو کيږي ، يا په بل عبارت: حروفوته حق ، او مستحق ورکول ، د حق څخه مراد مخارج او صفات لازمة دي ، د مستحق څخه مراد صفات عارضيه دي .

**۲ د علم تجويد موضوع:** د علم تجويد موضوع پر حروف هجاء ( الـفـاظ قـرآني ) يـا د الف څـخـه تـر يـا پوري ده .

**۳ د علم تجويد غرض ( مقصد ):** ( صَوْنُ الِّسَانِ عَنِ الْخَطَاءِ فِىْ تِلَاوَةِالْقُرْاٰنِ ) يعني د ژبي ساتنه ده د تلاوت په وخت کي له خطاء څخه ، يا پـه بل عبارت : ( تِلَاوَةُالْقُرْاٰنِ كَمَااُنْزِلَ وَتَحْسِيْنُ القِرَآءَةِ ) يعني :- د قران الکريم داسي تلاوت کول لکه څنګه چي نازل سو ئ دی ، او آواز ښايسته جوړول .

## ( د علم تجويد فضيلت ، فائده (ګټه) ، ارکان )

**۱ :- فضيلت:** د تجويد علم افضل د علمو دی ځکه چي ارتباط يې له کلام الله سره دی نو د هر علم ارتباط چي د کلام الله سره وي هغه بهتر د علمو دی ځکه کلام الله ( قران الکريم ) تر ټولو کتابو افضل ( بهتره ) دی .
**۲ :- فائده(ګټه):** ( سَعَادَةُالَّدارَيْن) يعني د دواړو جهانو نيکبختي ده ، او يا هم د الله عـزوجـل رضاء لاسته راوړل دي .
**۳ ارکان:** د علم تجويد عـمـده ۴ ارکـان دي ، لکه : ۱:- مخرجونه ، ۲:- صفتونه ، ۳:- ترکيبـي قـاعـدې يـا اجراء لکه:- (مـد ، ادغـام ، اخـفـاء ،اقلاب ، غـنـه ، او داسي نور... ) ۴ رياضة الـسـان : يـعـنـي پـه خـپـلـه ژبـه کـوښښ کـول تـر څـو حـروف صـحـيـح ادا سـي .

## ( د علم تجوید واضعین ، د علم تجوید مسمی ، حکم )

**۱: واضعین**:د علم تجوید وا ضعین ۵ دي، لکه: خلیل بن احمد فراهیدي، عمروبن عثمان، محمد بن مستنیر، یحییٰ بن زیاد ، مبرد (رح).[1]

**۲: د علم تجوید مسمی**:- ځکه په علم تجوید سره مسمیٰ سوئ دی ، چي علي کرم الله وجهَهُ د ترتیل معنٰی په تـجـوید سـره ور کـړه .

**۴حکم**:-علم تجوید فرض کفایي دی، او عملورباندي کول فرض عین دی، یعني که چیري په کلي کي یو کس علم تجوید زده کړي د ټول کلي غاړي خلاصي دي ، لکه د جنازې لمونځ ، نو د همدې لپاره باید ضروري پـه کلي یوقاري موجود وي .

## ( د ترتیل تفسیر )

**حضرت شاه عبدالعزیز (رح) د * ترتیل * په تفسیر کي فرمایي**:- چـي ترتیل پـه لغات کـي واضح او صاف ویلـو تـه وایـي ، او په شریعت ، کي ترتیل د ( ۷ ) شیانو د رعایت کولو نوم دی ، چي هغه په داسي ډول دي ۱:- هر حرف پـه خـپـل مـخرج کي ادا کول ، ۲:- د وقف اوابتدا رعایت کول ، ۳:- درې سره حرکات صاف ادا کول لکه ( زور ، زېر ، پېښ ) ۴:- آواز په اندازه لوړول ، ۵:- آواز ښایسته جوړول ، ۶:- د تشدید او د مد رعایت کول ، ۷:- د عذاب پـر آیـاتونو اسـتـغفارویل ، او د ثـواب او ترغیب پر آیتونو د جنت غوښتنه او سوال کول .

[1] من کتاب جمال القرآن [ کامل] ص : ۱۷

## ( د لحن او د هغو د ډولو تعريفونه )

**۱:لحن:-** لحن په لغات کي غلطی ته وايي ، په اصطلاح کي د تجويد خلاف قرآن ويل يا غلط ويل يا بې قاعدې ويلو ته لحن وايي.

**۲:لحن جلي:-** لحن جلي په لغات کي درنې ، ښکاره غلطی ته وايي په اصطلاح کي د يوه حرف پرځای بل حرف ويل دي .

**۳:لحن خفي:-**لحن خفي په لغات کي سپکي ، پټي غلطی ته وايي ، په اصطلاح کي د تجويد د قواعدو خلاف قرآن ويل دي.

يادونه:- لحن جلي ډېر ډولونه لري چي هغه مهم يې د تيري سوي صفحې په جدول کي ذکر سول .

## ( د اعوذبالله ، او بسم الله ثبوت )

د قرآن شريف د شروع کولو څخه مخکي د اعوذبالله او بسم الله ويل ضروري دي .

**۱:-** تعوذه په آيات کريمه سره ثابته ده الله ﷻ فرمايي( فَاذا قرائت القرآن فاستعذ بالله من الشيطان الرجيم ) النحل۹۸اية .

**۲:-** د بسم الله ثبوت : په دغه مشهور حديث سره راغلئ دی ( كُلُّ اَمْرٍذِیْ بَالٍ لَمْ يُبْدَأْ بِبِسْمِ اللهِ فَهُوَ اَقْطَعُ وَاَجْزَمُ ) .

**يادونه:**اعوذ بالله ته تعوذ ، او بسم الله ته تسمية ويل کيږي .

## ( د اعوذ بالله حکم ، د اعوذبالله او بسم الله ځايونه )

د اعوذ بالله په حکم کي د ۲ ډلو اختلاف دی ، اوله ډله وايي تعوذه د تلاوت په سر کي واجب ده ، او بله ډله وايي مستحب ده .

**واجب والاوايي:** اعوذ بالله خو په آيت سره ثابته سوه ، نو د لته د فاستعذ صغه راغلې ده نو دا خو د الله له طرفه - امردی او امر لپاره د واجبوالي دی دا د هغه چا دليل دی چي تعوذة واجب بولي .

**مستحب ولابيا وايي:** چي تلاوت د قران شريف خو مستحب دی او اعوذ بالله فرعه د قرآن شريف ده نو چي تلاوت مستحب سو اعوذ بالله خو بيا په طريق اولا مستحب ده ، نو موږ يې هم مستحب بولو .

**ځايونه:**د تعوذِ او تسمية لپاره ۳ محله دي ۱:- **ابتداِ تلاوت ابتداِ سورت** ۲:- **ابتداِتلاوت در ميان سورت** ۳:- **ابتداسورت در ميان تلاوت** .

## ( د ۳ محلو لپاره ۴ حکمونه )

د ۳ محلو لپاره ۴ حکمونه دي کوم چي مخکي تېرسوه ،۱:- **وصل کل** ۲:- **فصل کل** ۳:- **فصل اول وصل ثاني** ۴:- **وصل اول فصل ثاني** .

**وصل کل:-** هغه ته وايي چي تعوذه ، تسمية ، او سورت په يوه ساه وويل سي ، او **فصل کل** د هغه برعکس هر يو جلاجلا وويل سي.

**فصل اول وصل ثاني:-** هغه ته ويل کيږي ، چي تعوذه ، جلا وويل سي تسمية او سورت په يوه ساه وويل سي .

**او وصل اول فصل ثاني:-** بيا هغه ته ويل کيږي ، چي تعوذ او تسمية په يوه ساه وويل سي او سورت په بله ساه وويل سي ، په اول محل کي څلور حکمونه جائز دي ، په دوهم محل کي ۳ حکمونه جائز دي چي هغه نا جائز يې ( فصل اول وصل ثاني ) دی ، په ۳ محل کي هم ۳ حکمونه جائز دي چي هغه ناجائز يې دا دی ( وصل اول فصل ثاني )هغه چي نا جائز دي هغه ځکه چي اورېدونکي به دا فکر کوي چي بسم الله د دغه سورت حصه ( برخه ) ده.

## ( د سورت توبه په سر کي بسم الله نه ویل ، او شروع )

**۳ دلیله:-** دي چي د سورة برأت په سر کي بسم الله نه ویل کیږي ، ۱:- کله چي عثمان (رض) قرآن جمع کوی نو بسم الله یې دلته نه ولیکل ۲:-بسم الله خو د رحمت لپاره ویل کیږي مګر په سورة توبة کي د عذاب بیان سوی دی نو ځکه بسم الله نه وایو ۳:- سورت توبة او سورة انفال چي مخکي تر دغه سورت دی دوی دواړه په حکم کي یو دي ، د سورت توبة د شروع کولو مخکي ۳:-حکمونه جائز دي ۱:-وقف ۲:-وصل ۳:-سکته ، بهتره یې وقف دی .

## ( د مخارجو په بیان کي ،تعریف ، تعداد ، ډولونه ، او د حرف تعریف )

**۱:تعریف** :-مخرج په لغات کي د راوتلو ځای ته ویل کیږي ، په اصطلاح کي د کومو ځایو څخه چي حروف اداکیږي هغه ځایو ته مخرج وایي **تعداد** د امام سیبویة (رح) پر مذهب مخارج ۱۶ دي ، د امام فراه(رح) پر مذهب۱۴دي ، او د امام خلیل(رح) پر مذهب مخارج ۱۷دي ، هغه بهتره او مشهور یې د امام خلیل مذهب دی ، ځکه هغه هر حرف ته خپل مخرج ورکړی دی .

مخرج پر ۲ ډوله دی ، **۱:- مخرج محقق ۲:- مخرج مقدر** .

**۱مخرج محقق** :- هغه مخرج ته ویل کیږي چي معلوم ځای و لري ، لکه شونډان ، ژبه ، حلق .

**۲:- مخرج مقدر** :- هغه مخرج ته ویل کیږی چي معلوم ځای و نه لري ، لکه جوف دهن ، او خیشوم .

**۳ حرف** :-په لغات کي طرف یا کنارې‌ته ویل کیږي، په اصطلاح کي دا یو آواز دی چي تکیه کوي پر مخرج محقق او یا مخرج مقدر.

## ( د مخارجو وېش ، او اختلاف )

## ( اول ، دوهم ، دریم ، څلورم مخارج )

**۱مخرج**: دجوف دهن دی ( دخولې دننه خالي ګاه ) د دې څخه ( الف ، واو، ی ) ادا کیږي ، الف چي هرکله ساکن وي ماقبل یې زوروي لکه اَلصِّرَاطَ ،واو چي ساکن وی ماقبل یې پیښ وي لکه اَلْمَغْضَوْبِ ،یا چي ساکنه وی ماقبل یې زیر وي لکه ( نَسْتَعِیْنُ ).

**۲مخرج** : د اقصیٰ حلق دی کوم چي د ځیګر خوا ته دی دلته دا حروف ادا کیږي ( ء ، هـ ) .

**۳مخرج** : د وسط حلق دی کوم چي د حلق ما بینځ دی دلـته دا حـروف ادا کیږي ( ع ، ح ) .

**۴مخرج** : د ادنیٰ حلق دی کوم چي د خولې خوا ته نژدې دی دلته دا حروف ادا کیږي (غ ، خ).

یادونه : نوموړو حروفو ته ( ء ، هـ ، ع ، ح ، غ ، خ ) ته حروفي حلقي وائي .

د حلق نقشه او په هغه کي د حروفو ادا کول

## (پنځم ، او شپږم مخرجونه)

**۵مخرج** : د لهات دی ( حلقی ژبی ) ، هر کله چي د ژبي بیخ د مقابل پورته تالو سره ټکر وخوري دلـته دا حـرف ادا کیـږي ( ق ) .

**۶مخرج** : د قاف مخرج ته نژدې لږ کښته د خولې خوا ته دلته ( ک ) ادا کیږي .

او دې دواړو حروفو ته لهاتیه وایي ، لهات ( حلقی ژبی ) .

## (د غاښو پیژندل ، او ژبه)

د یو عـاقـل انـسـان پـه خوله کي ۳۲ غاښونه موجود دي چي نـومـونـه یـې پـه داسـي ډول دي ، **ثنایا** ، **رباعیا** ، **ناب** ، **اضراس** ، **ضواحک** ، **طواحن** ، **نواجذ** ( ناجذ ) غاښونه ثـنایا ۴ غاښه دي ، رباعیات هم ۴ غاښه دي ، انـیـاب هـم ۴ غـاښـه دي .

اضـراس ۲۰ غـاښه دي ، چي په هغه کي ضواحک ۴ غـاښه دي ، او طواحن په کښي ۱۲ دانې دي ، او ناجذ هم ۴ دي .

**ژبه**:-پر ۶ ځایه وېشل شوې ده، ۱:- د ژبي سر ۲:- د ژبي طرف ۳:- د ژبي حافه ۴:- د ژبي مابینځ ۵:- د ژبي شاه ۶:- د ژبي پای .

## (اووم ، او اتم مخارج)

**۷مخرج**: د ج ، ش ، ی ، دی هر کله چي د ژبي مینځ مقابل تالو ته پورته سي دلته دا حروف اداکیږي ، هغه یا ( ی )چي مده نه وي ، او دې حروفو ته حـروفي شـجـریـه وایـي ځکـه د غـه حـروف د شجر الـسـان ( وسط الـسـان ) ځـخـه ادا کـیـږي .

**۸مخرج**: د ( ض ) دی ، هر کله چي د ژبي حافه د اضراس علیاء د غاښو د بیخو سره ولګیږی ، د لته د ( ض ) حرف ادا کـیـږي .

د را سته طرف ځخه یې اداکول آسانه دی ، نوموړی حرف ځني خلګ په د یا ظ سره وایي چي دا ډول ویل یې نه دي صحیح .

## ( نهم ، لسم ، او يوولسم مخارج )

**۹مخرج:** هر كله چي د ژبي طرف سره د يو څه حصې د حافې ، د ثنايا ، رباعيا ، ناب ، او ضواحكو د وريو سره مائل ټكر وخوري د لته د لام حرف ادا كيږي ، كه راسته طـرف وي كـه چپـه .

**۱۰مخرج** : د ن ( النون ) دی دا هم له طرف الـسان څخـه ادا كـيږي ، مـكـر د لـتـه ضـواحـک غـا ښـونـه نـه دي شـامـل .

**۱۱مخرج** : د را ( الرا ) دی نژدې د نون مخرج ته مكر دلته درژبي شـا هم داخله ده ، دې ۳ حـروفو ته طرفيه او ذلقية وايي .

## ( دوولسم ، ديارلسم ، او څوارلسم مخارج )

**۱۲مخرج:**هر كله چي د ژبي سر د ثناياعليا د غاښو د وريو د بيخو سره ټكر وخوري دلته (ط، د، ت) اداكيږي ، او دې حروفو ته نطعية وايي.

**۱۳مخرج:**هر كله چي دژبي سر د ثناياعليا د غاښو د سرو سره ټكرو خوري دلته( ظ، ذ، ث ) ادا كيږي، دې حروفو ته لثوية وايي.

**۱۴مخرج:**د ژبي سر د ثنايا سفلىٰسرونه د يو څه نژدېوالي د ثناياعليا دلته( ص، ز، س )ادا كيږي دې حروفو ته حروفې صفيرية وايي.

## ( پنځلسم ، شپاړسم ، او اوولسم مخارج )

**۱۵مخرج:** هـر كـلـه چـي د لانـدي شـونـډي نـس د ثـنـايـا عـلـيـا د غاښو د سرو سره ټـكـر وخـوري د لـتـه ( ف ) ادا كـيږي .

**۱۶مخرج:**د دواړو شونډو دی دلته (ب-م-و) ادا كيږي، (ب) د شونډانو د لندې حصېڅخه ادا كيږي،له دې سببه ورته بحري ويل كيږي.

(م)د شونډانو د وچي حصې څخه ادا كيږي ، له دې سـبـبـه ورتـه بـري ويل كيږي ، او ( واو ) د شـونډانـو د نـاتمام يو ځاى كېدو څخه ادا كيږي ، دې درې حروفو ته شفوي حروف وايي ، يعني د شونډانو څخه ادا كيږي .

**۱۷مخرج:** د خيـشوم ( د پزي نرمۍ ) دى د لته غـنـه ادا كيږي ، حروف يې نّ او مّ دي چـي انشاالله مخكي بـه راسي .

## ( د حرفو د مخارجو د ادا نقشه )

## ( د صفت تعريف ، ډولونه ، تعداد )

**صفت:** په لغات کي وايي ( مَاقَامَ بَالشَيْئِ ) چي دربدل وکي پر يو بل شي ، پـه اصطلاح کـي صـفـت يو داسي کيفيت ( ډول ) دی چي کله حرف راوزي د مخرج څخـه نـو دا صـفـت ور وړانـــدي کـــيږي .

صفات پر ۲ ډوله دی ، ۱:- **صفات ذاتية** ۲:- **صفات عارضيه** ، **۱ صفات ذاتيه**: هـغـه صفتونه دي چـي د حرف څخه يې ايسته کړې ، د حرف ذات به ختم سي لکه:- ظ په ز ويل ، **۲ صفات عاريضه** :- هغه صفات دي چي حروفو ته ښايست ور په برخه کوي .

صفات لازمه ۱۷ دي ، ۱۰ ضد لرونکي ، او ۷ بې ضده ( غيرمتضاده ) ، تضاد بالمقابل دی ، لـکـه هـمـس ضد يې جهر دی .

## ( په حرف کي د صفاتو شمېر ، په حرف کي د صفاتو معلومول )

په يو حرف کي د ۵ صفاتو څخه کم نه راځي او د ۷ صفاتو څخه زيات نه راځي .

د صفاتو د معلومولو طريقه دا ده چي د صفت مجموعې ته وګورو ، که چيري په هغه مجموعه کي هغه حرف موجود نه وو . پـه ضـد کـي يې ګورو انشاالله هلته به موجود وي ، لـکه د ( ز ) حرف پـه همس کي نسته مګر په جهر کي بيا مـوجود ده .

## ( د صفاتو نقشه )

## ( همــــس )

**همس**:- په لغات کي کراروالي تـه وايي ، په اصطلاح په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته مهموسه حروف وايي.

**مطلب**:- د دې حروفو د ادا په وخت کي آواز په خپل مخرج کي په داسي کمزورئ سره و دريږي ، چي ساه جاري وي ،او په آواز کي يوقسم کښتوالى ( نرموالى ) وي ، دا صفت صرف په ( ۱۰ ) حروفو کي دى ، مجموعه يې ( فَحَثَّهُ شَخْصٌ سَكَتَ ) ده . د دې مجــموعــې مــعنٰى ده( هـغـه ښوک غوره کړئ ، چي چو پټيا يې غوره کړې وي ) .

## ( جــهــر )

**جهر**:- په لغات کي لوړوالي ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي داصفت پيداسي هغو ته مجهوره حروف وايي.

**مطلب**:-د دې حروفو د ادا په وخت کي آواز په خپل مخرج کي په داسي قوت سره و دريږي، چي ساه جاري کېدل بند سي او په آواز کـي يـو قـسـم ، لوړوالـى وي ، د مـهـمـوسـؤ ښـخـه مـاسېوا نـور ټـول مـجــهوره دي ، ( جهر ، دهمس ، ضد دى ) .

## (شـــدت)

**شدت:** په لغات کي سختوالي ته وايي ، پـه اصطلاح کي پـه کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته شديده حروف وايي.

**مطلب:**- د دې حروفو د ادا په وخت کي آواز په خپل مخرج کي په داسي قوت سره و دريږي، چي آواز بندسي ، او په آواز کي يو قسم سختي وي ، دا صفت صرف په ۸ حروفو کي دی ، چي مجموعه يې دا ده ( اَجِدُکَ قَطَبْتَ ) .

## (رخـــوت)

**رخوت:**-په لغات کي نرموالي ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو تـه رخـوة حـروف وايـي .

**مطلب:**- د دې حـروفـو د ادا پـه وخت کي آواز په خپل مخرج کي په داسي کمزورئ سره و دريږي ، چي آواز جاري وي ، او په آواز کي يو قسم نرمي وي، د شديده او متوسطه حروفو څخه ماسېوا نور ټول حروف رخوة دي(شدت، او رخوت سره ضد دي).

## (توســـط)

**توسط:**- په لغات کي مابينځ ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته متوسطه حروف وايي.

**مطلب:**- د دې حروفو د ادا په وخت کي آواز نه پوره بندوي ، او نه پوره جاري وي ، دا صرف په ۵ حروفو کي سته( لِنْ عُمَرُ ).

او توسط صفت نه شمېرل کيږي ، ځکه پـه ده کي يو څه شدت ، او يو څه رخوت دی، د مجموعې معنٰی ده( نرم سه اې عمره).

يادونه :- توسط د شدت ، او رخـوت تر مينځ مـا بينځي حالت دی ، که چيري يو صفت يې و شمېرو نو صفات بـيا ۱۸ کـيـږي .

## (استعـــلاء ، او د هغه مرتبې)

**استعلاء:**په لغات کي لوړوالي ته وايي،په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي داصفت پيداسي هغو حروفو ته حروفِ مستعلية وايي.

**مطلب** :د دې حروفو د ادا په وخت کي همېشـه د ژبي پای لوړ تالو ته پورته کيږي ، د لـوړېدو په سـبب دغـه حـروف ډک ويـل کيږي ، دا حروف صرف ۷ دي ، چي مجموعه يې ( خُصَّ ضَغْطِ قِظْ ) ده معنٰی يې داده ( ځان بيداره که قبر ځائ د تنګی دی ) .

د استعلاء پنځه مرتبې دي :-

۱- استعلاء اعلیٰ : که چيري د استعلاء تـــوری مفتـــوح وي او وروستـــه يې الف راغلئ وي ، لکه ( قَالَ ، غَاسِقٍ ) .

۲- استعلاء عالي : که چيري د استـــعـــلاء تـوری مفتـــوح وي او وروستـه يـې الـف نـه وي راغلئ ، لکه ( خَلَـــقَ ) .

۳- استعلاء اوســـــط ( مـنـځنی ) : کـــه چيـــري د استـعــلاء تـــوری مضـمـــوم وي ، لــکـــه ( يَدْخُلُونَ ) .

۴- استعلاء وسطیٰ : که چيـري د استعلاء توري ساکن وي او ماقبل يې فتحه يا ضمه ولـري ، لکـه ( اَطْعَمَهُمْ ، اُقْسِمُ ) .

۵- استعلاءادنٰی: که چيري د استعلاء توری مکسوروي ياپه خپله ساکن وي او ماقبل يې مکسوروي، لکه (صِرَاطَ،اِطْعم) .

## (استـفـال)

**استفال:**-په لغات کي کښتوالي ته وايي په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي داصفت پيداسي هغو حروفو ته حروفِ مستفلة وايي.

**مطلب** :- د دې حروفــو د ادا پـــه وخـت کـښـي د ژبي پـای لـوړ تـالـوتـه نـه پـورتـه کـيـږي ، لـه همدې سببه دغـه حروف باريک ويـل کـيـږي ، د حروفِ مستعلية څخه ماسېوا نور ټول حروفـي مستفلة دي ، او دواړه صفتونه يو لـه بل سـره ضـد دي .

## ( اطبــاق )

**اطباق:**- په لغات کي چسپېدلو ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو حروفو ته مطبقة وايي .

**مطلب:**- د دې حروفو د ادا په وخت کي د ژبي مابينځ لوړ تالوته پورته کيږي ، داحروف ۴دي ( ص ، ض ، ط ، ظ ) .

## ( انفتــاح )

**انفتاح:**-په لغات کي خلاصوالي ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي داصفت پيداسي هغو حروفو ته منفتحة وايي .

**مطلب:**-د دې حروفو د ادا په وخت کي دژبي مابينځ لوړ تالو ته نه پورته کيږي ، د مطبقة څخه ماسېوا نور ټول حروف منفتحة دي.

## ( اذلاق )

**اذلاق:**- په لغات کي طرف ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي ، هغو حروفو ته حروفِ مذلقة وايي .

**مطلب:**- دا حروف د ژبي او شونډانو له طرف څخه ډېر ژر او په اسانۍ سره ادا کيږي ، چي مجموعه يې ده ، ( فَرِّمَنْ لُبِ ) .

## ( اصـمات )

**اصمات:**-په لغات کي سختئ ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته مصمته وايي .

**مطلب:**- دا حروف د خپل مخرج څخه ډېر په سختئ سره ادا کيږي ،ژر او په اسانۍ سره نه اداکيږي ، د مذلقة څخه ماسېوا نور ټول حروفي مصمته دي ، او دوئ دواړه سره ضد دي .

يادونه:- نوموړي ۱۰ صفتونه يو له بل سره متضاده وه ، راتلونکي صفتونه ، غير متضاده دي .

## ( صَفِيــر )

**صفير:** په لغات کي شپېلکي ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته صفيريه وايي .

**مطلب:** د دې حروفو د ادا په وخت کي يوتيز آواز د شپيلکي په شان راوزي ، داسي حروف ۳ دي ( ص ، ز ، س ) .

## ( قلقلــه )

**قلقله:**-په لغات کي( شوربدنه ، خوځښت ) ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته لقلقه وايي .

**مطلب:**د دې حروفو د ادا په وخت کي ، د سکون په حالت کي په مخرج کي حرکت پيدا کيږي ، داسي حروف ۵ دي ، ( قُطْبُ جَدٍ ).

## ( د قلقلې ډولونه او مرتبې )

د قلقلې ۲ ( ډولونه )دي :

**۱ قلقله کبرای** ( لويه قلقله ) : که چيري د قلقلې توری د کلمې په آخر کي راسي او وقف ور باندي وسي ، لکه ( حَسَدْ ، اَحَدْ ) .

حرف ق:( **وعلى** كل ضامر يأتين من كل فج عميق ) **حرف** ط:( **والله** من ورائهم محيط ) حرف ب:( **فصب** عليهم ربك سوط عذاب )

حرف ج: ( **والسماء ذات البروج** ) حرف د:( قتل **أصحاب الأخدود** )

**۲قلقله صُغرا** ( کوچنی قلقله ) :- که چيري د قلقې توری ساکن وي د کلمې په مينځ کي راسي او وقف ور باندي ونه سي .

نـو صُـغـرا قـلـقـلـه پرکيږي . لـکــه :- ( يَطْمَعُوْنَ ، خَلَقْنا ) .

حرف ق:-( إقْترب للناس حسابهم ) حرف ط:-( والذين آمنوا وتطْمئن قلوبهم لذكر الله ) .

حرف ب:-( وإذ يرفع إبْراهيم القواعد من البيت ) .

حرف ج:-( لو شئت لاتخذت عليه أجْرا ) حرف د:- ( قل إن ادْري أقريب ما توعدون أم يجْعل له ربي أمدا ) .

او قـلـقـلـه ۵ مرتبــې لري :-

۱- قلقله اعلیٰ ( ډېره لوړه قلقله ) : که چيري د قلقلې توری مشدد وي د کلمې په اٰخر کي راسي او وقف هـم وربـانـدي وسي .

نـو اعـلـیٰ قلقله پرکيږي . لـکـه : ( وَتَبّ ، بِالحَقّ ، اَلْحَجّ ، اَلْحَقّ ) .

۲- قلقله عالي ( لوړه قلقله ) : که چيري د قلقې توری مشدد وي د کلمې پـه اٰخر کي راسي مگر وصل ور باندي وسي ، نو د لته قلقله عالي کيږي ، لکه ( بِالْحَقِ وَتَوَاصَوْ ، وَّتَبَّ مَآاَغْنٰی ) .

۳- قلقله وسطیٰ ( ميانه قلقله ) : که چيري د قلقلې تـوری ساکن وي د کـلمې پـه اٰخـر کـي راسـي او وقـف ور بـانـدي وسي .

نـو وسطیٰ قـلقله پـر کـيږی ، لکه ( لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ ) .

۴- قلقله اوسط : دا هغه قلقله ده چي د قلقلې توری سـاکن او د کلمې پــه منځ کــي وي ، لکه ( لَقَدْخَلَقْنَا ) .

۵- قلقله ادنیٰ : هغه قلقله ده چي د وصل په حالت کښي د قلقلې توری متحرك ( خوځنده ) وي ،لکه ( قُلْ ).

## (لیــــن)

**لـيـن:-** پـه لـغـات کـي نرمي ته وايي ، پـه اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسـي هـغـو تـه لـيـنـيـة وايـي .

**مطلب :-**د دې حروفود ادا په وخت کي حرف په خپل مخرج کي په نرمۍ سره اداکيږي ، داسي حروف ۲ دي( واو لين، ياء لين ).

## (اِنحِرَاف)

**اِنحِرَاف:-** پـه لغات کي کوږوالي ته وايي ، په اصطلاح کي پـه کـومـو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته منحرفه وايي .

داسي حروف ۲ دي ( ل ، ر ) .

**مطلب:-**د دې حروفو د ادا په وخت کي په لام کي د ژبي د طرف خواته، او په را کي د ژبي د شاه خوا ته مېلان( کوږوالۍ )کيږي.

## (تکریـر)

**تکرير:-** په لغات کي تکرار ته وايي ، په اصطلاح کي پـه کـومـو حـروفـو کي چـي دا صفت پـيـداسي هغو تــه تکـريـريـة وايي .

**مطلب:-** دا صفت يوازي په ( را ) کي دی ، د ( را ) د ادا کېدو په وخت کي په ژبه کي لړزه ( رپېدل ) وي ، په داسي ډول چـي را تـکـرار نـه سي ، يعني مشابهت د تکرار وي او حقيقت د تـکـرار ( عـيـن تـکـرار )نــه وي ، ( عـيـن تكرار خولحن جلي دی ، او د لـحـن جـلـي څـخـه ځـان سـاتـل پـکـار دي ) .

ستاسو ورورااحمدياسير ددعأ په اميد دی

## (تفشي)

**تفشي**:- په لغات کي شيندل ، پاشل ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته متفشي وايي .

**مطلب**:- دا صفت یوازي په شين ( ش )کي دی ، او د شين د ادا کېدو په وخت کي آواز دننه په خوله کي پاشل کيږي .

## (استطالت)

**استطالت**: په لغات کي اوږدوالي ته وايي ، په اصطلاح کي په کومو حروفو کي چي دا صفت پيداسي هغو ته مستطيلة وايي .

**مطلب**:- دا صفت یوازي په ضاد ( ض )کي دی ، د ادا په وخت کي د ژبي د حافې د اول څخه تر آخره پوري آواز جاري وي . نو د مخرج د اوږدوالي په سبب آواز هم اوږ ديږي . يادونه: صفات ذاتية يعني ( ١٧ )صفات مكمل خلاص سوه .

## ( د صفت د معلومولو طريقه )

كه غواړى چي په يوحرف كي يوصفت معلوم كړئ ، نو د هغه صفت د حروفو مجموعې ته وګوره ، كه چيري هغه حرف په كښي كي ؤ خوښه تر شه ، او كه نه ؤ ، نو په ضد كي يې هتماً سته انشاالله .

## ( صفات د كيفيت په لحاظ )

**١- قوي صفات**: قوي صفات (١٠) دي ، چي له ( جهر ، شدت ، استعلاء ، اطباق ، قلقله ، صفير ، انحراف ، تكرير ، تفشي ، او- استطالت ) څخه عبارت دي .

**٢- ضعيف صفات**:- ضعيف صفات ( ٥ ) دي ، چي له ( همس ، رخوت ، استفال ، انفتاح ، او لين ) څخه عبارت دي .

**٣- متوسط صفات**:- متوسط صفات ( ٣ ) دي ، چي له ( توسط ، اذلاق ، او اصمات ) څخه عبارت دي .

## ( حروف د مرتبو په لحاظ )

**١-اقواحروف**:هغه حروف دي چي ټول صفات د قوت په كښي كي وي ، كه يو صفت د ضعف په كښي وي هغه مشكل نه لري.

اقواحروف :- ۴ دي ، ١-ض ٢-ط ٣-ظ ۴-ق .

**٢-قوى حروف**:- هغه حروف دي چي ډېر صفات د قوت په كښي كي وي ، او لږ صفات د ضعف وي .

قوي حروف :- ۶ دي ، ١-ج، ٢-د، ٣-ص ۴-ع ۵-غ ۶-ء .

**٣-متوسط حروف**:- هغه حروف دي چي نيم صفتونه د قوت ، او نيم صفتونه د ضعف په كښي كي وي .

متوسط حروف :- ۴ دي ، ١-ب ٢-ر ٣-ز ۴-ل ، مجموعه يې ( بر لز ) ده .

**۴-ضعيف حروف**:- هغه حروف دي چي ډېر صفتونه د ضعف ، او لږ صفتونه د قوت په كښي كي وي .

ضعيف حروف:- ١٢ دي ، ١-الف ٢-ت ٣- خ ۴-ذ ۵-س ۶-ش ٧-ک ٨-م ٩-ن ١٠-و ١١-ی .

**۵-اضعف حروف**:- هغه حروف دي چي ټول صفتونه د ضعف په كښي كي وي .

اضعف حروف:- ٣ دي ، ١-هـ ٢-ف ٣-ح ۴- ث مجموعه يې ( فحثه ) ده .

يادونه:- صفات لازمه پای ته ورسېده ، راتلونكئ بحث پر صفاتو عاريضه باندي دی انشاالله .

## ( د ۲۹ حروفو د مخارجو او صفاتو اجراء )

| شمېره | حروف | مخـــــارج | نومونه | تعداد | صفات لازمـــــه متضاده | | | | | صفات لازمه غیر متضاده | مرتبه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ا | د جوف دهن څخه ادا کيږي . | مـــده | ۵ | جهر | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۲ | ب | د شونډانو دلندې حصې څخه ادا کيږي . | بحري | ۶ | جهر | شدت | استفال | انفتاح | اذلاق | قـلـقـلـه | متوسط |
| ۳ | ت | د ژبې د سر او ثنايا عليا د بيخ څخه ادا کيږي . | نطعيه | ۵ | همس | شدت | استفال | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۴ | ث | د ژبې دسر او ثنايا عليا د کنارو څخه ادا کيږي . | لثويه | ۵ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۵ | ج | د ژبې له مينځ څخه ادا کيږي . | شجريه | ۶ | جهر | شدت | استفال | انفتاح | اصمات | قـلـقـلـه | قوي |
| ۶ | ح | د وسط حلق څخه ادا کيږي . | حلقي | ۵ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | . | اضعف |
| ۷ | خ | د ادنی حلق څخه ادا کيږی . | حلقي | ۵ | همس | رخوت | استعلاء | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۸ | د | د ژبې دسر او د ثنايا عليا د بيخ څخه ادا کيږي . | نطعيه | ۶ | جهر | شدت | استفال | انفتاح | اصمات | قـلـقـلـه | قوي |
| ۹ | ذ | د ژبې د سراو ثنايا عليا د کنارو څخه ادا کيږي . | لثويه | ۵ | جهر | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۱۰ | ر | دژبې طرف دثنايا، رباعی ،ناب دوريوسره ولګيږي. | طرفيه | ۷ | جهر | توسط | استفال | انفتاح | اذلاق | انحراف ، تکرير | متوسط |
| ۱۱ | ز | د ژبې د سر او ثنايا سفلی د څو کو څخه اداکيږي. | صفيريه | ۶ | جهر | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | صفير | متوسط |
| ۱۲ | س | د ژبې د سر او ثنايا سفلی د څوکو څخه ادا کيږي. | صفيريه | ۶ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | صفير | ضعيف |
| ۱۳ | ش | د ژبې د مينځ څخه ادا کيږي . | شجريه | ۶ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | تفشي | ضعيف |
| ۱۴ | ص | د ژبې د سر او ثنای اسفلی د څوکو څخه اداکيږي. | صفيريه | ۶ | همس | رخوت | استعلاء | اطباق | اصمات | صفير | قوي |
| ۱۵ | ض | د ژبې بغل چې د لوړي زامي د غاښو سره و | حافيه | ۶ | جهر | رخوت | استعلاء | اطباق | اصمات | استطالت | اقوا |
| ۱۶ | ط | د ژبې د سر او ثنايا عليا دبيخ څخه ادا کيږي . | نطعيه | ۶ | جهر | شدت | استعلاء | اطباق | اصمات | قـلـقـلـه | اقوا |
| ۱۷ | ظ | د ژبې د سر او ثنايا عليا دکناروڅخه ادا کيږي . | لثويه | ۵ | جهر | رخوت | استعلاء | اطباق | اصمات | . | اقوا |
| ۱۸ | ع | د وسط حلق څخه ادا کيږي . | حلقي | ۵ | جهر | توسط | استفال | انفتاح | اصمات | . | قوي |
| ۱۹ | غ | د ادنی حلق حخه ادا کيږي . | حلقي | ۵ | جهر | رخوت | استعلاء | انفتاح | اصمات | . | قوي |
| ۲۰ | ف | د ثناياعليا دڅوکو او لاندی شونډي دنس څخه | شفوی | ۵ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اذلاق | . | اضعف |
| ۲۱ | ق | د ژبې بيخ چې هر کله د لوړتالو سره و لګيږی . | لهاتيه | ۶ | جهر | شدت | استعلاء | انفتاح | اصمات | قـلـقـلـه | اقوا |
| ۲۲ | ک | د قاف د مخرج څخه لږ د خولي وخواته ادا کيږي | لهاتيه | ۵ | همس | شدت | استفال | انفتاح | اصمات | . | ضعيف |
| ۲۳ | ل | د ژبې طرف د ثنايا ، رباعي، ناب،او ضواحکو دوريوسره چي ولګيږي. | طرفيه | ۶ | جهر | توسط | استفال | انفتاح | اذلاق | انحراف | متوسط |
| ۲۴ | م | د شونډانو د وچې حصې څخه ادا کيږي . | بری | ۶ | جهر | توسط | استفال | انفتاح | اذلاق | غنه | ضعيف |
| ۲۵ | ن | د ژبې طرف د ثنايا ، رباعي ، ناب د وريوسره چي | طرفيه | ۶ | جهر | توسط | استفال | انفتاح | اذلاق | غنه | ضعيف |
| ۲۶ | و | د دواړو شونډانو د پوره ګول والي څخه ادا کيږي. | شفوی | ۶ | جهر | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | لين | ضعيف |
| ۲۷ | ه | د اقصی حلق څخه ادا کيږي . | حلقي | ۵ | همس | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | . | اضعف |
| ۲۸ | ء | د اقصی حلق څخه ادا کيږي . | حلقي | ۵ | جهر | شدت | استفال | انفتاح | اصمات | . | قوي |
| ۲۹ | ي | د ژبې د مينځ څخه ادا کيږي. | شجريه | ۶ | جهر | رخوت | استفال | انفتاح | اصمات | لين | ضعيف |

## ( صفات عاريضه )

**صفات عاريضه:** هغه صفات دي چي ځني وخت په حرف کي موجود وي ، او ځني وخت په حرف کي موجود نه وي .

صفات عاريضه:- په ۸ حوروفو کي شامل دي ، چي مجموعه يې ( لَرْمَن اُوي ) ده ، او د اجمال له مخي په ۱۳ډوله دي.

| تفخيم | ترقيق | حركت | سكون | مدفرعي | صـلـه | ادغام |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اقلاب | اخفاء | غنه زماني | تسهيل | ابدال | حـــــذف | |

د صفات عاريضه او صفات لازمه په مابينځ کي ۳ مشهور فرقونه سته :-

**۱فرق:** دصـفـات لازمـه غلطي پـه لـحـن جـلي کـي داخلـه ده ، او د صفات عاريـضـه غلطـي پـه لحـن خـفي كـي داخله ده .

**۲فرق:** د صفات لازمه پيداكيدل پر يوسبب د اسبابو باندي موقوفه نه وي ، او د صفات عـاريضه پيداكيدل پر يوه نه يوه سبب بـانـدي مـوقـوفـه وي .

**۳فرق:** صفات لازمه په ټولو حروفو کي پيداكيږي ، او صفات عاريضه په ځينو حروفو کي وي او په ځينو حـروفـو کـي نـه وي .

## (تفخيم او ترقيق )

د تفخيم معنٰی ډک ویل ، او ترقیق معنٰی تش ( باریک ) ویل دي ، تفخیم پر ۲ ډوله دی ، ۱:-قسم تفخیم مستقیل او اصلي دی ، لکه تفخیم د حروفي مستعلیه ۇ او ، ۲:- قسم تفخیم غیر مستقیل او عاریضي دی ، لکه د را او د لفظ د الله ، اول قسم تفخیم پر حرکت باندي موقوفه نه دی، او دوهم قسم تفخیم پر حرکاتو باندي موقوفه دی، لکه راچي زور یا پیښ ولري ډکه ویل کیږي .

## ( شبه مستعليه )

شبه مستعليه حروف عبارت دي له( لام ، را ، الف ) څخه ، سره له دې چي دغه حروف مستعليه حروف نـه دي خـو پـه بعضي حالاتو کي دا حروف ډک لوستل کيږي، د مستعليه حروفو او دغه درې حروفو تر منځ فرق دادی ، چي حروفي مستعليه هميشه ډک لوستل کيږي ، که مضموم ، مفتوح ، مكسور ، ساكن په هر حال کي دغه حروف ډک لوستل کيږي ، او شبه مستعليه حروف کله ډک ، او کله تش ويل کيږي ، نو دغه ۳ حروف دمستعليه حروفو سره مشابه دي .

## ( د نون ساکن او تنوين تعريف )

ورغـنـدی لـرونـکـی ( ساکن ) نـون او تـنـوين:-

**دساكن نون تعريف:-** هغه نون ته وايي چي حرکت يعني زور ، زېر او پېښ ونه لري د اسم ، فعل ، او حرف په طرف او منځ کي راځي لکه :- ( إِنَّآ أَنذَرْنَـٰكُمْ ، وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ) .

ورغندی لرونکۍ نون د اصلي کلمې جز هم راځي لکه ( اَنْعَمَ ) او زائد هم راځي لکه ( فَانْفَلَقَ ) چي اصل يې يوازي ( فلق ) دی د ( فعل ) پر وزن باندي .

**دتنوين تعريف:** هغه ساکن نون ته وايي چي يواځي د اسم په آخر کې په تلفظ کښي راځي مگر د وقف په حالت کي لمنځه ځي

اوپه لیك کښي تنوین په دغه علامو ( -ً -ٍ -ٌ ) سره پېژندل کیږي ، لکه : ( خَلَقْتَ طِينًا ، وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ) .

## ( په وقف کي د تنوین حکم )

په وقف کي د تنوین حکم : تنوین د وقف پر مهال درې حالتونه لري :-

**لومړی داچي** : تنوین په دوو زورو وي په نوموړي حالت کي تنوین په الف سره بدلیږي .

**دوهم داچي** : د پېښ یا د زېر تنوین د وقف په حال کي راسي نوموړي تنوینونه حذفیږي .

**دریم داچي** : تنوین پر مد وره ګردئ تا راسي د وقف په حال کي په هاء سره بدلـیـږي .

## ( د ساکن نون او تنوین حکمونه )

د ساکن نون او تنوین لاندیني څلور حکمونه دي :

**۱- ادغام** **۲- اظهار** **۳- اقلاب** **۴- اخفاء**

**۱- ادغام** :ادغام په لغت کښي پټولو ته وایي او په اصطلاح کښي د یوه توري پټول دي په بل توري کښي چي اول ساکن او دوهم متحرك وي چي د دواړو څخه یو شد لرونکئ توری جوړسي اول توري ته یې مدغم او دوهم توري ته یې مدغم فیهِ ویـل کیږي .
د ادغام توري :- د ادغام توري شپږ دي چي د ( يَرْ مَلُوْ ن ) په لفظ کښي جمع سـوي دي ، تر ساکن نون یا تنوین وروسته چي د ( يَرْ مَلُوْ ن ) له تورو څخه یو راسي هلته ادغام کیږي لکه : ( مَن يُؤْمِنُ ، مِن وَاقٍ ، هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ) .

### د ادغام ډولونه

ادغام پر دوه ډوله دئ چي د لاندنیو ډولونو څخه عبارت دي:-

**۱.ادغام دغنې سره** **۲.ادغام بېله غنې**

**ادغام سره دغنې** :که چیري تر ساکن نون یاتنوین وروسته د ( يَرْ مَلُوْن ) له تورو څخه پاته څلور توري ( ي ، م ، ن ، و ) راسي چي ورته (يَمْنُوْ ) وایي هلته ادغام مع الغنه کیږي چي دې ادغام ته ناقص ادغام هم ویل کیږي .
یادونه :- د غنې تریف ، او اقسام به انشاالله مخکي راسي .

| د هغه ادغام مثالونه چي بېله غنې وي | | |
|---|---|---|
| د ادغام حرف | د نون مثال | د تنوین مثال |
| الیاء | ( وَمَن يُطِعِ ) | ( وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ ) |
| النون | ( لَن نَّدْخُلَهَآ أَبَدًا ) | ( اَمْشَاجٍ نبْتَلِيْهِ ) |
| المیم | ( مِن مَّآءٍ دَافِقٍ ) | ( صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ) |
| الواو | ( مِن وَالٍ ) | ( وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ) |

**بېله غنې ادغام:** كه چيري تر ساكن نون يا تنوين وروسته د ( يَرْ مَلُوْن ) له تورو څخه ( لام يا راء ) راغلې وي چي ورته ( لر ) وايې هلته ادغام بلا غنه كيږي دې ادغام ته تام ادغام هم ويل كيږي .

| د هغه ادغام مثالونه چي د غنې سره نه وي | | |
|---|---|---|
| د ادغام حرف | د نون مثال | د تنوين مثال |
| اللام | ( أَن لَّن تَقُولَ ) | ( مَالاً لُّبَدًا ) |
| الراء | ( مِن رَّسُولٍ ) | ( عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ) |

## ( د ادغام سببونه )

د ادغام سببونه : ادغام په عمومي توګه درې سببونه لري چي د لاندې سببونو څخه عبارت دي :

**۱- ادغام مثلين** **۲- ادغام متجانسين** **۳- ادغام متقاربين** .

**۱- ادغام مثلين** : هغه ادغام ته ويل كيږي چي دوه هم ډوله حروف يو په بل كي مدغم سي : لكه ( اذْهَب بِّكِتَٰبِى ) .

**۲-ادغام متجانسين** : هغه ادغام تـه ويـل كيږي چـي د يـوه مخرج حـروف يـو پـه بـل كـي مـدغـم سي ( اذ ظَّلَمو ) .

**۳-ادغام متقاربين** : هغه ادغام ته ويل كيږي چـي پـه مخرج او صفت دواړو كي سره نژدې وي لـكـه( من فوقكم ) .

د دا خلولو په اعتبار سره ادغام پر دوه قسمه دی:- **۱-ادغام صغير** **۲-ادغام كبير** .

**۱-ادغام صغير** : هغه ادغام ته ويل كيږي چي ساكن حرف په متحرك حرف كي داخل سي ، لـكـه ( اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُونَ ) .

**۲-ادغام كبير** : هغه ادغام ته ويل كيږي چي مدغم اومـدغـم فيه دواړه حـروف مـتحـرك وي ، لكـه (أ َتُحٰجّونّى ) .

د اداكېدو او جوړښت ( كيفيت ) په اعتبار سره ادغام پر دوه قسمه دی:- ۱-ادغام تام ۲-ادغام ناقص .

**۱-ادغام تام**: هغه ادغام ته ويل كيږي چي د مدغم حرف هيڅ يو صفت باقي پاته نسي ، لكه ( مِنْ لَّدُنْهُ ، مِنْ رَّبِّهِمْ ) .

**۲-ادغام ناقص**: هـغـه ادغـام تـه ويـل كيږي چـي د مـدغـم حرف يـو صـفـت بـاقـي پـاتـه سـي ، لـكـه ( مِنْ وَّالٍ ) .

**د ادغام ګټه** : د ادغام ګټه سپكوالی دئ ځكه چي د دوو حرفونو څخه په يوه مشدد حرف باندي تلفظ كيږي .

**يادونه**:په قرآن عظيم الشان كښي اووه ځايونه داسي راغلي دي چي تر نون ساكن وروسته د( يَرْ مَلُوْن )توری راغلئ دی مګر ادغام ندی پرسوئ هغه اووه ځـايه له (صِنْوَانٌ ، قِنْوَانٌ ، بُنْيَنٌ، ٱلدُّنْيَا ، يسٓ ۝ وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْحَكِيمِ ، نٓ ۚ وَٱلْقَلَمِ ، كَلَّا ۖ بَلْ ۜ رَانَ ) څخه عـبـارت دي.

په لومړيو څلورو كلمو كښي چي له ( صِنْوَانٌ ، قِنْوَانٌ ، بُنْيَنٌ، ٱلدُّنْيَا ) څخه عبارت دي ځكه ادغام ونـسـو كـه ادغـام وسي بيا التباس د مضاعف سره راځي يعني تر ادغام وروسته نه معلوميږي چي دوې(ياء) ګاني يا دوه (واو) د اصلي كلمې څخه دي او كه په قاعده د يرملون ادغام سوی دئ، يا په بل عبارت كه چيري نون ساكن او د (يَرْ مَلُوْنْ) توري په يوه كلمه كښي راسي هـلـتـه نو ادغام نه كيږي بلكه اظهار واجب دی .

او په پنځمه او شپږمه کلمه کښي چي له ( يسٓ ۝ وَٱلۡقُرۡءَانِ ٱلۡحَكِيمِ ، نٓ ۚ وَٱلۡقَلَمِ ) څخه عبارت دي ځکه ادغام ونسو چي دا مقطعات توري دي په پريکوڼ سره ويل کيږي او د حروفو مقطعات تر ادغام وروسته پريکوڼ له منځه ځي په داسي حال کښي چي ادغام يو ځايوالي ته اړتيا لري چي قاعده د ( يَرْ مَلُوْن ) يې غواړي نو ځکه ادغام نـه کـوو ، او په آخره يعني په اومه کلمه کښي چي د (كَلَّاۖ بَلۡۜ رَانَ) څخه عبارت ده ځـکـه ادغام ونـه سو چي دلته سکته کيږي دسکتې له سببه يوځای والي پاته نه سـو .

## (اظـهــار)

**۲-اظهار** : اظهـار په لغت کښي ښکـاره کـولـو تـه وايـي او پـه اصطلاح کښي د دوو تورو جلاکول دي په داسي ډول سـره چي هـر تـوری بـېـل او ښـکـاره و لـوسـتـل سـي .

**د اظهار توري** :- شپږ دي نوموړو تورو ته حلقية توري هم وايي چـي د (همزة ، هاء ، حاء ، خاء ، عين ، غين ) څخه عـبـارت دي .

تر ساکن نون يـا تنوين وروسته چـي د حروف حلقيوو څخه يو حرف راسي هلتـه اظـهـار کـيږي پـوره مـثـالـونـه يې پـه لاندي جدول کي مطالعه کړئ :

| د اظـهـار مـثـالـونـه | | | |
|---|---|---|---|
| د اظهار توري | نون په يوه کلمه کي وي | نون په دوو کلمو کي وي | د تنوين مثالونه |
| **الهمزة** | ( وَيَنْئَوْنَ ) | ( مَنْ اَعْطي ) | ( كِتَٰبٌ أَنزَلۡنَٰهُ ) |
| **الهاء** | ( وَهُمْ يَنْهَوْنَ ) | ( مَنْ هَاجَرَ ) | ( جُرُفٍ هَارٍ ) |
| **العين** | ( وَالانْعَام ) | ( مِنْ عَلَق ) | ( وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ) |
| **الحاء** | ( يَنْحِتُوْنَ ) | ( مَنْ حَادَ الله ) | ( عَزِيزٌ حَكِيمٌ ) |
| **الغين** | ( فَسَيُنْغِضُوْنَ ) | ( مِنْ غِسْلِين ) | ( قَوْلاً غَيْرَ ) |
| **الخاء** | ( وَالْمُنْخَنِقَةُ ) | ( مِنْ خشي ) | ( لَطِيفٌ خَبِيرٌ ) |

## ( د اظهار لامل او مرتبې )

**د اظهار لامل** :- څرنګه چي نون او تنوين د ژبې د طرف څخه ادا کيږي او د حلق توري د حلق څخه ادا کيږي چي تر منځ يې نه تقارب اونه تجانس سته چي له امله يې ادغام رامنځته سي په پايله کي بله لاره نسته پرته له دې چي اظهار وکړي.

د اظهار مرتبې: اظهار لاندينۍ درې مرتبې لري :

**۱.عالي** **۲.متوسط** **۳.ادنی**

**عالي اظهــار**: هغه وخت کيږي چي تر ساکن نون او تنوين وروسته همزة او هاء راغلې وي .

**متوسط اظهار**: هغه وخت کيږي چي تر ساکن نون او تنوين وروسته عين او حاء راغلې وي .

**ادنی اظـهـار**: هغه وخت کيږي چي تر ساکن نون او تنوين وروسته غين او خاء راغلې وي .

## (اقــــلاب)

**۳-اقلاب**:-اقلاب په لغت کښې اړولو ته وايي او په اصطلاح کښې د ساکن نون يا تنوين بدلول دي په ساکن ميم سره چي غنه هم پر وسي البته اقلاب هغه وخت کيږي چي تر ساکن نون او تنوين وروسته ( باء ) راغلـې وي پاته دي نه وي چي د اقلاب توری يوازي همدغه بـأ ده او بل توری نه لري ، مثال يې په لاندي جدول کي مطالعه کړئ :

| د اقلاب مثالونه | | | |
|---|---|---|---|
| د اقلاب توری | ميم په يوه کلمه کي وي | ميم په دوو کلمو کي وي | د تنوين مثال |
| الباء | ( انمبئوني ) | ( واما منمبخل ) | ( سَمِيْعٌ بَصِيْر ) |

## ( د اقلاب لامـل )

**داقلاب لامل** :- ځرنګه چي تر نون او تنوين وروسته باء راسي نو ادغام خو شونی نه دئ ځکه سببونه يې شتون نه لـري او اخـفـاء هم ستونزمنه ده ځکه مخرجونه يې سره ليري دي نو غوره وګڼل سوه چي نون او تنوين په مـيـم واوړي تر څـو اخـفـاء تـه لاره هواره سي او په اسانۍ سره ترسره سي ځکه ميم د باء سره په مخرج کي يو دئ او پـه څلور صفتونو کي هـم سـره شـريـک دي يعني په جهر ، استفال ، انفتاح او اذلاق کي ميم او بـاء سره شريک دي همدا ډول ميم د نون سره په شپږو صـفـتـونـو کـي سره شـريـک دي يـعـنـي پـه جـهـر ، غـنـه ، تـوسط ، اسـتـفـال ، انـفـتـاح ، اذلاق سـره شـريـک دي .

## (اخــــفـــاء)

**۴-اخفاء**:- اخفاء په لغت کښې پټولو ته ، په اصطلاح کښې د اظهار او ادغام تر منځ په نون ساکن يا تنوين سره تلفظ کولو ته وايي.

**داخـفـاء تـوري** :- د اخـفـاء تـوري پـنـځـلـس دي ( ص ؛ ض ؛ ذ ؛ ث ؛ ک ؛ ج ؛ ش ؛ س ؛ ق ؛ د ؛ ط ؛ ز ؛ ف ؛ ت ؛ ظ ) .

که چيري تر ساکن نون يا تنوين وروسته د حلقي ، يرملون او اقلاب توري نه وه راغلي يعني د هجاء د تـورو د پـاتـه تـورو څخه يو توری راغلی هلته اخفاء مع الغنه کيږي .

په هـر صـورت د اخفاء مع الغنه حقيقت دا دئ چي د نون او ميم آوازو نه بېله تشديده داسی راووزي چي د خپل مخرج څخه صاف نه راوزي بلکي يو څه نيم ډوله ښکاره سي لکه:- پوره مثالونه يې په جدول کي مطالعه کړئ :

| د ساکن نون او تنوين د اخفاء مثالونه | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ګڼه | د اخفاء توري | نون په يوه کلمة کي وي | نون په ددوو کلمو کي وي | د تنوين مثالونه |
| ۱ | الصاد | ﴿ ينصركم ﴾ | ﴿ مـن صلصال ﴾ | ﴿ ريـحاً صرصرا ﴾ |
| ۲ | الذال | ﴿ منـذر ﴾ | ﴿ مـن ذ الـذي ﴾ | ﴿ سـراعاً ذالك ﴾ |
| ۳ | الثاء | ﴿ منثورا ﴾ | ﴿ فاما من ثقلت ﴾ | ﴿ مطاع ثم امين ﴾ |
| ۴ | الكاف | ﴿ينكثون﴾ | ﴿ فـمن كـان ﴾ | ﴿ كـراماً كاتبين ﴾ |
| ۵ | الجيم | ﴿انجينكم﴾ | ﴿ ان جـاءكـم ﴾ | ﴿ فصبر جميـل ﴾ |
| ۶ | الشين | ﴿ انـشره ﴾ | ﴿ ان شـآء الله ﴾ | ﴿ رسولاً شاهدا ﴾ |
| ۷ | القاف | ﴿ينـقلبون﴾ | ﴿ فـان قتلوكم ﴾ | ﴿ كتب قيمة ﴾ |
| ۸ | السين | ﴿مانسخ﴾ | ﴿ من سلسـلة ﴾ | ﴿ عَبِدَٰتٍ سَٰئِحَٰتٍ ﴾ |
| ۹ | الدال | ﴿ اندادا ﴾ | ﴿ ومن دخلـه ﴾ | ﴿ قنوان دانية ﴾ |

| ۱۰ | الطاء | ﴿ینطقون﴾ | ﴿ مـن طـیـبـات ﴾ | ﴿ شـرابـاً طهورا ﴾ |
|---|---|---|---|---|
| ۱۱ | الزای | ﴿ انـزلنه ﴾ | ﴿ مـن زکـهـــا ﴾ | ﴿ صعیدًا زلـقا ﴾ |
| ۱۲ | الفاء | ﴿ فانفروا ﴾ | ﴿ من فضل الله ﴾ | ﴿ شیئاً فــریا ﴾ |
| ۱۳ | التاء | ﴿ منتهون ﴾ | ﴿ وان تـصبــروا ﴾ | ﴿ حلیةً تلبسونها ﴾ |
| ۱۴ | الضاد | ﴿ منضود ﴾ | ﴿ مـن ضـریـع ﴾ | ﴿ قوماً ضالیـن ﴾ |
| ۱۵ | الظاء | ﴿ فانظروا ﴾ | ﴿ مـن ظـللتم ﴾ | ﴿ قرًى ظـهـرة ﴾ |

## ( د اخفاء لامل او د تورو مرتبې )

**د اخفاء لامل:** څرنګه چې تـر سـاکن نون او تنوین وروسته پورتني پنځلس توري راسي په دغه وخت کي دوئ دوه د دغـه پنځلسو تورو سره نه پوره نژدې والی لري چي ادغام پرې وسي اونه پوره لیري والی لري چـي اظهار پرې وسي له همدې امله پر دې پرېکړه سوې ده چي یو منځنی حالت اختیار سي چي نه پوره اظهار دئ او نه پوره ادغام دئ بلکي یو منځنی حالت دئ .

د اخفاء د تورو مرتبې : د اخفاء توري پر درو برخو وېشل سوي دي:-

**په لومړی برخه کي** :- طاء ، دال او تاء راځـي د دغــه درو تــورو مــرتــبــه و تـنـویـن او نـون تــه نـژدې مــرتـــــــبــه ده .

**په دوهمه برخه کي** :- قاف او کاف دي دغه دوه توري د تنوین او نون څخه په مرتبه کي لیري دي ځکه په مخرج ترې لیري دي .

**دریمه برخـه** :- پـاتــه لــس تــوري دي چــي د نــون او تــنــوین پــه وړانـــدي مـــنـــځـــنی مــرتــبــه لــرونـکــي دي .

## ( د ساکن نون او تنوین ځیني توپیرونه )

د ساکن نون او تنوین توپیرونه : ساکن نون او تنوین په خپل منځ کي ځیني توپیرونه لري چي عبارت دي له :-

**۱:-** نون ساکن د وصل او وقف په دواړو حالتونو کـښـي ویـل کیـږي او تنوین په وقف کښي حذفیږي یا بدلیږي یعني نصبـي ( د دوو زورو ) تنوین په الف سره بدلـیږي لکه ( صُبْحًا ، چي صُبْحا ) ویل کیږي او د دوو پېښو او دوو زېرو تنوین حذفیږي .

**۲:-** ساکن نون مرسوم او لیکلی وي پرته د دوځایو څخه چي (وَ لَیَکُوْ نًا) په سورة یوسف کښي او ( لنسْفَعاً ) په سورة علق کښي دي دلته هـم په اصـل کښي دغه تنوین نه دئ بلکي خفیفه نون دئ ځکه چي پر فعل باندي تنوین نه راځي ، او تنوین داسي نه دئ بـلـکـي تـل غـیري مـرسـوم وي پــرتــه د یــوه ځـای څـخـه چـي د ( کَاَیِّنْ ) څـخـه عـبارت دئ .

**۳:-** ساکن نون د کلمې په اول ، منځ او اخیر کښي راځي او تنوین یواځي او یوا ځي په پای کښي راځي .

**۴:-** ساکن نون د کلمې په ټولو اقسامو یعـنـي اسم ، فعل او حرف کـښـي راځـي او تـنـوین یـوا ځـي پـه اسم کښي راځي .

**۵:-** ساکن نون اصلي او زائد دواړه راځي او تنوین تل زائد وي .

---

ستاسو ورور احمدیاسیر د دعاء په امید دی

## ( میم ساکن )

ساکن یعني وړغندی لرونکی میم چي کله په کلمة کي راسي درې حکمونه لري چي د لاندي حکمونو څخه عبارت دي :-

**۱- ادغام** **۲- اخفاء** **۳- اظهار**

**۱ : دساکن میم ادغام** :- که چیري تر ساکن میم وروسته بل میم راغلی وي هلته له غنې سره ادغام کیږي چي د دواړو میمانو څخه یو مشدد میم جوړسي دې ادغام ته متماثلین ادغام وایي لکه :-

| د ادغام توری | بېلګه ( مثال ) |
|---|---|
| **المیم** | (فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ) |

**۲ : دساکن میم اخفاء** : که چیري تر ساکن میم وروسته (باء) راغلې وه هلته اخفاء مع الغنه کیږي چي دې اخفاء ته اخفاء شفوي ویل کیږي لکه :-

| د اخفاء توری | بېلګه ( مثال ) |
|---|---|
| **المیم** | (وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ) |

**۳ : د میم ساکن اظهار** :د میم ساکن اظهار پر دوه ډوله دئ چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :-

**۱- قوي اظهار** **۲- ضعیف اظهار**

**۱- قوي اظهار** :و هغه اظهار ته ویل کیږي چي په اظهار کښي یې مبالغه وي نوموړی اظهار هغه وخت صورت نیسي چي تر ساکن میم وروسته (واو) یا ( فاء ) راسي هلته نو قوي یا اشد اظهار کیږي لکه :

| د قوي اظهار توری | بېلګه (مثال) |
|---|---|
| **الواو** | ( عَلَيْهِمْ وَلَا ٱلضَّآلِّين ) |
| **الفاء** | ( أَصَٰبِعَهُمْ فِيٓ ءَاذَانِهِم ) |

**۲- ضعیف اظهار** : و هغه اظهار ته ویل کیږي چي په اظهار کښي یې ډېرښت نه وي یعني مطلق اظهار وي نوموړی اظهار هغه وخت صورت نیسي چي تر ساکن میم وروسته د ( واو ) یا ( فاء) څخه پرته نور پاته توري راسي نـو هلته ضعیف اظـهـار کیږي .

**یادونه**: د ساکن میم په ادغام او اخفاء کښي غنه شرط ده .

## ( د لام په قاعدو کي )

**۱:- لام جلاله:** عبارت دی د لفظ د الله د لام څخه . نوموړی لام درې حالته لري:

**۱:-** که چیري د لام جلاله مخکي حرف ( ماقبل ) یې زور ( فتحه ) درلود ، نو ډک لوستل کیږي ، د مثال په ډول ( انَّ اللهَ ).

**۲:-** که چیري د لام جلاله مخکي حرف ( ماقبل ) یې پېښ ( ضمه ) درلود ، نو ډک لوستل کیږي ، د مثال په ډول ( نَصْرُاللهِ ).

**۳:-** که چیري د لام جلاله مخکي حرف ( ماقبل ) یې زېر( کسره ) درلوده، نو تش( باریک ) ویل کیږي، لکه:( باللهِ ، بِسْمِ الله ).

## ( لام مطلق )

**۲:- لام مطلق:-** د لام جلاله څخه ماسېوا په قران الکریم کي چي ټوله لامونه راغلي دي ټول د لام مطلق په نامه یادیږي . د مثال په ډول ( اَلْقارِعَةُ ) .

**لام تعریفي:** هغه لام دی چي د کلمې په سر کي راځي ، د مثال په ډول ( اَلرَّحْمٰنُ ، اَلحَمْدُ )، د نوموړي لام لپاره دوه حکمونه دي.

**۱:- حکم اظهار** **۲:- حکم ادغام.**

**احکم اظهار:-** هغه وخت رامنځته کیږي ، چي د نوموړي ( ال ) لام وروسته حروفي قمریه راغلي وي ، چي مجموعه جمزوري رحمة الله علیه په دې قول کي جمعه کړې ده:( ابغ حجک وخف عقیمه )( الهمزة ـ الباء ـ الغین ـ الحاء ـ الجیم ـ الکاف ـ الواو ـ الخاء ـ الفاء ـ العین ـ القاف ـ الیاء ـ المیم ـ الهاء ) .

**۲حکم ادغام:-** هغه وخت رامنځته کیږي ، چي د نوموړي (ال) لام وروسته د حروفي قمریه څخه ماسېوا هغه حروف چي د شمسیه په نامه یادیږي راسي .

| د ادغام توري | مثالونه | د ادغام توري | مثالونه |
|---|---|---|---|
| | | **د شمسیه لام مثالونه** | |
| الطاء | ( الطیبت ) | النون | ( النشور ) |
| الثاء | ( الثمرات ) | الدال | ( الدهر ) |
| الصاد | ( الصلوت ) | السین | ( السلم ) |
| الراء | ( الرحمٰن ) | الظاء | ( الظآنین ) |
| التاء | ( التائبون ) | الزای | (والزیتون) |
| الضاد | ( والضحي ) | الشین | (والشمس) |
| الذال | ( والذاکرین ) | الام | ( الله ) |

| د اظهار توري | مثالونه | د اظهار توري | مثالونه |
|---|---|---|---|
| | | **د قمریه لام مثالونه** | |
| الهمزة | اَلاَنْعَامَ | الخاء | اَلْخَیْرَ |
| الباء | اَ لْبِرّ | الفاء | اَلْفِتْنَةُ |
| الغین | اَلْغَمَامُ | العین | اَلْعَامَةُ |
| الحاء | اَلْحَمِیْمُ | القاف | اَلْقَمَرَ |
| الجیم | اَلْجَنَهُ | الیاء | اَلْیَوْمَ |
| الکاف | اَلْکَوْثَرُ | المیم | اَلْمَالَ |
| الواو | اَلْوِلْدَانُ | الهاء | اَلْهُدَی |

یادونه:- **احکم اظهار** ته همدا ډول اظهار قمري هم وایي ، **۲حکم ادغام** ته همدا ډول ادغام شـمسـي ویـل کـیږي .

**لام غیر تعریفي:-** هغه نور لامونه چي په قرآن الکریم استعمالیږي ، د غیرتعریفي لامونوپه نامه یـادیږي ، او همېشه هغوی ټوله باریک( تش ) ویل کیږي .

## (حــرکــت)

**حرکت:-** حـرکت پـه لغات کي ښـوربېدلو ته وایي ، د تجوید په اصطلاح کي له زور ،زېر ، پېښ څخه عبارت دئ .

**فتحه یازور :-** فتحه د انـفـتـاح شفـتـین څخه اخسـتل سـوې ده چـي مقصد ځـني د خولـې او آواز خلاصـوالی دئ .

**ضمه یاپېښ :-** ضمه د انضمام شفتین څخه اخستل سوې ده چي مقصد ځني د شونډانو او آواز یو ځـای والی دئ .

**کسره یازېر :-** کسره د انـخـفـاض څـخـه اخـسـتـل سـوې ده چـي مقصد ځـني د خـولـې او آواز ټـیـټ والی دئ .

**قاعده** :زېر او پېښ همېشه باریك وي او زور که چیري پر باریك حرف باندي وو باریك ویل کیږي او که پر ډك وو ډك ویل کیږي.

## (امــالــه)

**اماله** : د امالې لغوي معنٰی میل او کږېدل دي او په اصطلاح کښي د زېر لوري ته د زور راکږېدل دي همدا ډول د( یاء ) لـوري ته

د ( الف ) راکږېدل دي لکه(بِسۡمِ ٱللَّهِ مَجۡرٜىٰهَا) که چیري د زېر لوري ته د زور کږېدل او د الف لوري ته د یا کږېدل زیات وي نو

اماله کُبرایٰ ورته ویل کیږي او که لږ وه اماله صُغرایٰ ورتـه ویـل کــیــږي .

**یـادونـه** : د امام حفص رحمة الله علیه په آند په ټـولـه قرآنکریم کي اماله یـوائـي یو ځای کیږي چي هغـه پـورتـه ذکرسـوه .

## (اشــبــاع)

**اشباع** : اشباع و دې ته وایي چي حرکت دومره اوږد سي چي د هغه څخه بل توری پیداسي .

په دغه وخت کښي هم د اشباع څخه ځان ساتل حتمي دئ دا ځکه چي که مشدد توری پـه سختئ سره ونـه ویل سي نـو هـغـه تشدید به لیري سي کله چي تشدید لیري سي نو لحن جلي به راسي او لحن جلي حرام دئ په ځانګړي ډول په وقـف کـښـي زیـاتـه پاملرنه کول پکار دي که داسي و نسي نو مشدد حرف به مخفف سي ځکه په وقف کښي چي ساه په خلاصېدو وي د مشدد لپاره د قوت اړتیا ده ځکه که داسي ونسي نو د تساهل له امله غلطي شونې ده .

**قاعده** :که چیري تر فتحې وروسته الف نه وي، تر ضمې وروسته ساکن واو نه وي او تر کسرې وروسته ساکنه یاء نه وي په دغه حرکاتو کي اشباع جائزه نه ده لکه : ( قُلۡ، وَٱلۡأَرۡضَ ، مَنۡ إِلَٰهٌ ) همدا ډول تر ضمې څخه وروسـتـه چـي واو مـشدد وي او تـر کسرې وروسته چي یاء مشدده وي لکه : ( ٱلسَّوِیِّ ،لُجِّیٍّ ) .

ستاسو ورور احمدیاسیر د دعاء په امید دی

## (تسهيل)

**تسهيل** :- تسهيل و دې ته وايې چې همزة د همزې او د ماقبل د حرکت څخه پيداکېدونکی حرف تر منځ وي مثلاً زور څخه پيداکېدونکی توری الف دی او د پېښ څخه پيداکيدونکی توری واو دی او د زېر څخه پيداکيدونکی توری ياء ده لکه: ( ءَاْعۡجَمِيٌّ ).

يادونه : پاته دي نه وي چې د امام حفص رحمة الله عليه په مذهب تسهيل يوازي په پورتني لفظ کي دئ بل ځای نسته .

## ( د راء په قاعدو کښي )

د ( راء ) ډکوالی :کومه راء چې په قرانکريم راځي څلور حالتونه لري چې د لاندي حالتونو څخه عبارت دي :-

**لومړی حالت** : چـــي راء نـــرمـــه ويـل کـيږي او ډک ويـل يـې نـه وي روا ( جائز ) .

**دوهم حالت** : چـي د راء نرم او ډک ويـل دواړه روا وي مـګـر نرمـه ويـل يې غـوره وي .

**دريم حالت** :راء نرمه هم ويل کيږي او ډکه هم ويل کيږي مګر ډکه ويل يې غوره وي .

**څلورم حالت** : چـــي راء ډکـه ويـل کـيـږي او نـــرم ويـــل يې نـه وي روا ( جائز ) .

## ( د راء لومړی حالت )

**لومړی حالت** : لـومړی حـالـت د راء نـرم ويل دي چي ډک ويل يې نه دي روا دغه حالت په ۸ صورتونو کي مـنـځـتـه راځـي چـي د لاندينيو ځايونو څخه عبارت دي :-

**۱**-کله چي راء زير ولري نرمه ويل کيږي هر ډول راء چي وي يعني که د کلمې په سر کي راغلې وي لکه :( رجال ) ، کـه د کلمې پـه منځ کـي راغلې وي ، لکه : ( مـريـئـا ) ، که د کلمې په پای کي راغـلـې وي لکه : ( ليلة القدر خير ) ، زېر يې اصلي وي لکه په مخکنـي مثال کي او که يې زېر عارضي وي لکه :- ( وذکر اسم ) ، ورستنئ حرف يې د استفال توری وي لکه په مخکني مثال کي او که يې وروستنی توری د استعلاء توری وي لکه : ( ورضوان من الله ) .

**۲**-هغه راء چي امـاله پـرې کيږي نرمه ويـل کـيـږي الـبـتـه د حفص رحـمـة الله عليه پـه آند دغه راء يـوازي يو ځای ده چي د ( بِسۡمِ ٱللَّهِ مَجۡرٜىٰهَا )څخه عبارت ده .

**۳**-راء چي زېر ولري او د روم له امله وقف پرې وسي نرمه ويل کيږي لکه : ( والعصر ) .

**۴**-راء چي د کلمې په منځ کي راغلې وي ، په اصلي سکون سره ساکنه وي ، مخکي يې زېر وي او وروسته يې د استعلاء توری نه وي راغـلـئ نـرمـه ويـل کـيـــږي لـــکـــه : ( فـرعـون ) .

## ( د راء د نرم ( تش ) والي پاته ۴ صورتونه )

**۵**-راء چي د کلمې په آخر کي راغلې وي او په اصلي سکون سره ساکنه وي که يې وروسته د استعلاء توری وي او که نه وي نـرمـه ويل کيږي ، البته دغسي راء په قرآنکريم کي درې ځايه شتون لري او نور ځايونه نسته چي د لاندي ځايـونـو څخه عـبـارت دي:-

( رب اغفرلي ، فاصبرصبرا ، ولاتصعر خدک ، ان انذر قومک ) .

٦ -راء چي د وقف له امله په عارضي سکون سره ساکنه وي او مخکي يې کسره وي هر ډول راء چي وي يعني تر وقف وړاندي زور لرونکې وي لکه(لينذرَ)، که تر وقف وړاندي پېښ لرونکې وي لکه :(منتشرٌ) او که تر وقف وړاندي زېر لرونکې وي لکه:( منهمرٍ ).

٧ -راء چي د وقف له امله په عارضي سکون سره ساکنه وي او مخکي توری يې هم ساکن وي البته د استفال صفت لرونکې وي لکه :- ( الذکر ) .

٨ -راء چي د وقف له امله په عارضي سکون ساکنه وي او مخکي يې مديه او يا لينة ياء راغلې وي لکه ( الحمِير )په مديه ياء کي او( ذالک خير )په لينة ياء کي .

## ( د راء دوهم حالت )

**دوهم حالت** : راء چي نرم او ډک ويل يې دواړه روا وي مگر نرم ويل يې غوره وي دغه حالت څلور نوعي لري چي د لاندينيو نوعو څخه عبارت دي :-

**لومړی نوعه** : راء چي د وقف له امله وړغندی لرونکې سوې وي او وروسته يې ياء د سپکوالي له امله حذف سوې وي دغسي راء يوازي په قرانکريم کي په دوو کلمو کي راځي چي د ( نذر ، يسر ) څخه عبارت دي .

البته د نذر لفظ په قرانکريم کي ۶ ځايه په سورة قمر کي تکرار سوی دئ بل ځای نسته او يسر يو ځای په سورة فجر کي راغلی دئ.

**دوهمه نوعه** : راء چي د وقف له امله وړغندی لرونکې سوې وي او وروسته يې ياء حذف سوې وي د غه نوعه يوازي په قرانکريم کي په يوه کلمة کي راځي چي د ( اسر ) څخه عبارت ده البته نوموړې کلمة داسي ده چي کله يې په سر پوري فاء موښتې وي . لکه:(فاسر باهلک بقطع من الليل ولايلتفت منکم احدا) او کله يې وړاندي ان وي لکه :( ولقد اوحينا الي موسیٰ ان اسر بعبادي ).

فا چي يې په سر پوري موښتې وي په قرانکريم کي درې ځايه راغلې ده چي يو ځای په سورة هود کي دوهم ځای په سورة حجر کي او دريم ځای په سورة دخان کي دئ ، چي مخکي يې ان راغلی وي دوه ځايه دغه کلمة په قرآن کي راغلې ده چي يو ځای په سورة طٰهٰ کي او دوهم ځای په سورة شعراء کي دئ .

## ( دريمه ، او څلورمه نوعه ( قسم ) )

**دريمه نوعه** : راء چي د وقف له امله ساکنه وي، مخکنی توری يې د استعلاء صفت ولري او ساکن هم وي او د وصل په وخت کي نومړې راء مکسوره وي لکه :- ( واسلنا له عين القطر ) البته دغه راء په قرانکريم کي يوازي په پورتني ځای کي راغلې ده چي په سورة سبأ کي دئ او بل ځای نسته .

**څلورمه نوعه** : راء چي وړغندی لرونکې وي ، مخکنی توری يې په اصلي کسره سره مکسوره وي او وروسته يې د استعلاء مکسور توری راغلی وي د غه کيفيت لرونکې ياء هم په قرانکريم کي يوځای راغلې ده چي د ( فکان کل فرق کالطود العظيم ) څخه عبارت ده چي په سورة شعرآء کي ده .

په پورتنيو څلورو نوعو کي نرم والی او ډک والی دواړه روا دئ مگر نرم والی يې غوره دئ .

## ( د راء دریم حالت )

**دریم حالت**:- راء چي نرم والی او ډک والی یې دواړه روا وي مګر ډک والی یې غوره وي په دغه حالت کي دوې نوعي سته چي د لاندي نوعو څخه عبارت دي :-

**لومړی نوعه** : راء چي د وقف لـه امله وړغندی لړونکې سوې وي مخکنی توری یې ساکن وي ، تر د غه ساکن توري مخکي د استعلاء زبر لرونکئ توری وي او د غه راء د وصل په حالت کي زور لرونکې وي په دغه حالت کي نرم والی او ډک والی دواړه روا دي البته ډک والئ یې غوره دئ لکه : ( ان تبوءا لقومکما بمصر بیوتا ) .

په د غه کیفیت راء په قرانکریم کي یوازي د مصر په لفظ کي راځي چي څلور ځایه په قرآنکریم کي تکرار سوی دئ لومړی ځای په سورة یونس کي دوهم او دریم ځای په سورة یوسف کي دی او څلورم ځای په سورة زخرف کي دئ .

## ( د راء د دریم حالت دوهمه نوعه )

**دوهمه نوعه** : راء چي د وقف له امله وړغندی لړونکې سوې وي مخکنی توری یې پېښ لرونکی ، یا زور لرونکی او یا وړغندی لرونکی نه وي خو مخکي توری یې زور ولري مګر راء د وصل په حالت کي زېر لرونکې ویل کیږي په دغه ځای کي هم ډک والی او نرم والی دواړه روا دي خو ډک والی یې غوره دی لکه : ( البشَر ) .

**څلورم حالت** : راء چي ډکه ویل کیږي او نرم ویل یې روا نه وي غالبًا په لاندي دوولسو ځایونو کي راځي :-

**۱**-راء چي زور ولري لکه : ( رَبِّ ) **۲** - راء چي پېښ ولري لکه : ( رُزِقُوا ) .

**۳** - راء چي په اصلي سکون سره وړغندی لرونکې وي او مخکنئ توری یې زور ولري لکه : ( مَرْيَم ) .

**۴** -راء چي په اصلي سکون سره ساکنه وي او مخکنئ توری یې پېښ ولري لکه : ( تُرْ هِبُونَ ) .

**۵** -راء چي په اصلي سکون سره ساکنه وي او مخکنئ توری یې زېر ولري مګر وروسته یې د استعلاء زور لرونکی توری وي . لکه :- ( لَبِٱلۡمِرۡصَاد ) .

## ( د راء د ډکوالي راتلونکي ۴ ځایونه )

**٦** - راء چي په اصلي سکون سره ساکنه وي او مخکنئ توری یې زېر لرونکئ وي البته مخکي توری یې په بله کلمة کي وي لکه :- ( ارتضي ، وقل رب ارحمهما ) .

**۷** - راء چي په اصلي سکون سره ساکنه وي او مخکنئ توری یې زېر لرونکی وي مګر د مخکنی توری حرکت یې عارضي وي او مخکنئ توری او راء په یوه کلمة کي وي لکه:- ( ٱرۡجِعُوٓاْ إِلَىٰٓ أَبِيكُمۡ ) .

**۸** - راء چي په اصلي سکون سره ساکنه وي او مخکنئ توری یې عارضي زېر ولري البته مخکنئ توری د راء څخه په جلا کلمة کي وي لکه:- ( أَمِ ٱرۡتَابُوٓاْ ).

**۹ -** راء چي د وقف له امله وړغندی لرونکې وي او مخکنی توری یې پېښ لرونکي وي لکه :- ( ویولون الدُبرْ ) .

## ( د راء د ډګوالي وروسته ۳ ځایونه او مشدده راء )

**۱۰ -** راء چـــي د وقـف لـه امـلـه وړغندی لـرونـکـې وي او مخکنئ تــوری یې زور ولـري لـکـه :- ( ومن کَفَرْ ) .

**۱۱ -** راء چي دوقف له امله وړغندی لرونکې وي ، مخکنئ توری یې هم وړغندی لرونکی وي خو تر مخکي توري د مخه توری یې پـېـښ ولـري لـکـه:- ( ٱلۡعُسۡرِ ) .

**۱۲ -** راء چي د وقف له امله وړغندی لرونکې وي ، مخکي توری یې هم وړغندی لرونکي وي خو تر مخکني توري د مخه تـوری یې زور ولري لکه:- ( وَٱلۡفَجۡرِ ) .

مشدده راء : مشدده راء یعني شد لرونکي راء پـه حکم کښي د یـوې راء ده څـه ډول چـي یې حرکت وي د هغـه مـوافـقـه بـه ویل کیږي ، لکه:- ( الرَّحۡمَـٰنِ )

## ( د کلمې تعریف ، اقسام )

**دکلمې تعریف** : کلمه یو داسي لفظ دئ چي پر یوې مفر دي معنٰی باندي دلالت کوي لکه : ﴿ زید ، ضرب ، من ﴾ او داسي نور...

**دکلمې اقسام** : ښـکـاره خبره ده چـي عربي کلمة پـر درو برخـو وېـشل سـوې ده چـي د لاندیـنـي ډولـونو څخه عبـارت دي :-

**۱ - اسم** **۲ - فعل** **۳ - حرف ( توری )**

**۱ - اسم:** په لغت کښي علو ( لوړوالی ) ته وایي او په اصطلاح کښي هغه لفظ ته ویل کیږي چـي پـر معـنـٰی باندي د بل لفظ د اړتیا پرته د لالت وکړي او په زمانو پوري هم اړه و نلري لکه : (احمد ، ځای ، ښار ) او داسي نور ...

## ( فعل ، حرف )

**۲ - فعل:** پـه لغت کښي کړني یا کار ته وایي اوپه اصطلاح کښي له هغه لفظ څخه عبارت دئ چي پر معنٰی باندي د اړتیا پر ته دلالت وکړي مگر په یوه له درو زمانو پوري اړه ولري چي له ( ماضی ، حال او استقبال ) څخه عبارت دي.

لکه : ( ذَهَب ، ضَرَبَ ، يَنْصُر ) .

**۳ - حرف ( توری )** : په لغت کښي طرف یا څنډي ته وایي او په اصطلاح کښـي هغـه لفظ تـه وایـي چي د بل توري د یوځای کېدو پرته پر معنیٰ دلالت نسـي کـولای او پـه زمـانـو پـوري هـم اړه نـه لـري لـکـه :- ( مِنْ و الی ) .

البته د حرف د غه تعریف د نحو علم د پوهانو له آنده دئ او د مجودینو له آنده یې هغه تعریف ؤ کوم چي د مخارجو په بـحـث کـي تـېر سـو .

## ( د حرف قسمونه )

**دحرف قسمونه** :- حروف پر دوه قسمه دي چي د لاندي قسمونو څخه عبارت دي :-

**لومړی : اصلیة** **دوهم : فرعیة** .

**اصلية حروف** :- نوموړي حروف (۲۹) دي چي د ( الف ) څخه بيا تر ( ي ) پوري د هجاء د تورو څخه عبارت دي ځکه ورته اصلية حروف ويل کيږي چي په خپل اصلي کيفيت سره ادا کيږي .

**فرعية حروف** : فرعية حروف د هغه تورو څخه عبارت دي چي د دوو مخرجو څخه ادا کيږي او يا د دوو حرفونو ، صفتونو تر منځ متردد وي ، ځکه ورته فرعية ويل کيږي چي فرعه د زېږد په معنٰی ده دغه حروف هم په اصلي بڼه نه دي . بلکي پر يوه بله زيږدول سوي بڼه باندي ادا کيږي نوموړي حروف اته دي .

## ( د اسم او فعل تر منځ توپير )

د اسم او فعل تر منځ توپير:-

اسم او فعل تر خپل منځ ځيني لفظي توپيرونه لري يعني هر يو ځانته خپلي ځانګړتياوي لري چي ځيني يې په لاندي ډول دي:-

د اسم نښي : ـ

۱- د هري کلمې په اخر کښي چي زېر يا تنوين راغلی وي هغه اسم دئ لکه : ( عليماً ) او ﴿ بزيدٍ ﴾ .

۲- هره کلمه چي په الف لام سره پيل سوې وي هغه اسم دئ . لکه : ( ٱلْحَمْدُ ) ﴿ الانعام ﴾ .

فعل دپورته ځانګړتياوو څخه يوه هم نه لري .

د فعل نښي : ـ

۱-د فعل په سر کي قد راځي لکه : ﴿ قد يعلم ﴾ ۲- د فعل په سر کي سين راځي لکه : ﴿ سيخرج ﴾ .

۳- د فعل په سر کي سوف راځي لکه : ﴿ سوف تعلمون ﴾ ۴- د فعل پر سر باندي جازمه توری راځي لکه : ﴿ لم يضرب ﴾ .

## ( شد لرونکی نون او ميم ( نون مشدد ، ميم مشدد ) )

نون او ميم چي شد لرونکی وي کله د کلمې په منځ کي وي او کله د کلمې پر ځنډه راغلئ وي لکه :-

| شد لرونکي توری | د کلمې په منځ کي | د کلمې په پای کي |
|---|---|---|
| النون | ﴿ وَيُمَنِّيهِمْ ﴾ | ﴿ إِنَّ ﴾ |
| الميم | ﴿ أُمَّتُكُمْ ﴾ | ﴿ ثُمَّ ﴾ |

په هر صورت هر چيري چي شد لرونکی ميم او نون راسي ، د کلمې په منځ کي وي ، که په پای کي وي په اسم کي وي ، که په فعل کي وي او که په حرف کي ، د غنې څرګنوالی پکښي واجب دی يعني غنة به پرې کيږي او دوئ ته د غنې توري هم ويل کيږي.

## ( غـنــة )

**د غنې تعريف** : غنة په لغات کي زمزمې ته ويل کيږي ، په اصطلاح کي يو ښائسته ږغ دئ چي د ميم او نون په جسمونو کي نغښتی دئ ، **د غنې مخرج** : لکه مخکي چي يې بيان وسو د خيشوم څخه ادا کيږي .

**د غنې ډولونه** : غُنه پر دوه ډوله ده چي عبارت دي له:- **۱- زماني غنة** **۲- ذاتي غنة**

**۱-زماني غنه** : هغه غُنة ده چي کله وي اوکله نه وي لکه د نون ساکن غُنة یا د تنوین غُنـة چـي وروستـه یې د حلق توری وي پر یوه لاهـم غُنه نه کیږي او کـه نـور توري وي غُـنـه پـر کـیـږي لکه ﴿ اَنْتَ ، کُنْتَ ﴾ او داسي نور...

**۲-ذاتي غنة** : هغه غُنه ده چي تل وي لکه نون او میم چي مشدد وي:﴿ الٓمٓ ﴾،﴿ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ ، إِنَّ ٱلَّذِينَ ﴾ او داسي نور چـي هر وخت غُنة پر کیږي .

د خیشوم څخه د غُنې ټول توري تلفظ کیږي یعني هر وخت چي د غُنې پر تورو غُنة وسي د دوئ آواز له خیشـوم څخه راوزي .

**د غنې حروف** : نـون او میـم چي مشدد وي دتشدید غُنة پرې کیږي ، ساکن نون او تنوین چي وروسته یـې د حلق د تـوري او د تام ادغام د تورو یـعـني ( لر ) څخه پرته کوم بل توري راسي غُنه پر کیږي .

**د غنې اندازه او د معلومولو طریقه** : د غُنې اندازه یو الف ده چـي دوه حـرکـتـه کـیـږي البته نـون او میم چي مشدد وي غُنة یـې تر یو نیم الف پـوري هـم زیـاتـیـدای سـي چـي درې حـرکـتـه کـیـږي .

او د معلومولو طریقه یې داده چي خلاصی گوتي بندي او یا بندي گوتي خلاصي کړي .

## (مَـــــدّ)

د تجوید د اصولو په لړ کي مدونه هـم پـه اړینو شیانو کي شمېرل کیږي ځکه مد کول د رسول الله ﷺ څخه ثابت سـوی دئ له همدې امله پکار ده چي د مد ټول ډولونه و پېژندل سي ترڅو په صحیح ډول مد اداسي د مد تفصیل په لاندي ډول دی .[5]

**دمد لغوي معنی** :- مدپـه لـغـت کـښـي زیـاتـولـو ، کـشـولـو ، او اوږدولـو تـه وایـــي .[6]

**دمد اصطلاحي معنی**:- کشول دي د آواز سره د ساه پر حروف لین او یا پر حروف مده بانـدي .

**دمد توری** : د مد توري درې دي چي عبارت دي : [ واو ، الف ، یاء ] چي مجموعه یې وای کیږي .

یادونه : پورتني حروفو ته دمد توري وایي او د لین توري هم ورته وایي یعني مد د لین پر تورو هم کیږي او د مد پـر تورو هـم کیږي که څه هم د مد او لین توري یو دي خو صرف تـوپیر یې دومـره دئ چي د مد تورو ته هغه وخت حروف مـد وایـي چـي خپله ساکن او د مخکني توری حرکت یې له خپله جـنسه څخه وي لکه : ﴿ نُوحِيهَآ ﴾ .

د الف جنس زور ، د واو جنس پېښ او د یا جنس زېر دئ ، او د لین تورو ته هغه وخت د لین توري ویل کیږي چي دوئ خپله سـاکـن وي او د مـخـکـني توري حرکـت یې زور ولـــري .

حاصل دا چـي پـورتـنـي درې تـوري څـو حالتونه لري چي د لاندي حـالـتـونو څـخه عـبـارت دي :

دمده د تورو څخه الف تل مده او لین راځي بل حالت نه پکښي جوړیږي ځکه الف تل ساکن وي او مخکي توری یې زور وي د دغه شرط په لرلو سره هم لین ورته ویل کیږي او هم مده ورته ویل کیږي ، مگر یاء او واو درې لاندیني حالتونه لـري :

---

5: الاصل في هذالباب ماثبت قتادةﷺ انه قال سألت انسﷺ بن مالک عن قراءة النبيﷺ ؟ فقال : کان یمد مدا . اخرجه البخاري في کتاب فضائل القرآن – باب مد القراءة . انظر : فتح الباري بشرح صحیح البخاري ج : ۹ ص : ۹۰ حدیث : ٥٠٤٥ . وبلفظ اخر : اخرجه النسائي ج : ۲ ص : ۱۷۹ .

6 : کما في قوله تعالي :﴿ وَيُمۡدِدۡكُم بِأَمۡوَٰلٖ وَبَنِينَ ﴾ اي یزدکم .

**۱**-واو او یاء که خپله ورغندي لرونکي وه د مخکني تورو حرکت یې له خپله جنس څخه وو مده توري ورته ویل کیږي.

**۲**- واو او یاء که خپله وړغندي لرونکي وه او د مخکني تورو حرکت یې زور وو د لین توري ورته ویل کیږي .

**۳**- واو او یاء که وړغندي لـرونـکـي نـه وه بـلـکـي حـرکـت لـرونکي وه حـروف عـلـت ورتـه ویـل کیږي .

**دنوم اېښودلو لامل** : مده تورو ته ځکه مده توري وایي چي پر دې تورو باندي آواز کشیږي او مد هم کشېدو ته ویل کیږي او لین په دې وجه ورته ویل کیږي چي لین د نرمۍ په معنٰی دئ او دغه حروف هم د لین صفت لرونکي دي یعني په ډېره اسانۍ سره اداکیږي.

**د مد د تورو دټاکلو لامل** :د مد لپاره ځکه واو الف او یا ء و ټاکل سوه چي د هجاء په تورو کښي بل توری نسته چي د حرکاتو څخه جوړسوی وي ، الف د دوو زورو څخه ، واو د دوو پېښو څخه ، او یا د دوو زېرو څخه جوړه سوې ده. مدیت د دې درو تورو په ذات کښي پروت دئ ځکه چي آواز پرې کشیږي .

## (د مد ډولونه)

مد پر دوه ډوله دی چي د لاندینیو ډولونو څخه عبارت دي :-

**۱- مداصلي** : هغه مد ته وایي چي د مد د توري څخه وروسته د مد سبب سکون [ وړغندی ] یا همزة شتون ونه لري لکه :-

﴿ قِيلَ، قَالُوٓاْ، قَالَ ﴾ و مد اصلي تـه مـد طبعي هم وایي ځکه چي د جوړ او روغ طبیعت څښتن دغه مد تر خپلي اندازې نه کموي اونه یې زیاتوي د مد اندازه یې یو الف ده چـي دوه حرکته کیږي او تر خپل اندازې یعني یو الف کم ویل شرعاً حرام دي ، همدارنګه اصلي مد دوه نومونه نور هم لري لکه:- ۱:- مد طبعي ، ۲:- مـد ذاتي .

ځکه مد اصلي ورته ویل کیږي چي اصل ذات ته ویل کیږي که چیري یو الف اندازه مدونه سي نو د حرف ذات به له منځه لاړسي لکه قَلَ ، په اصل کي قَـالَ .

## (د اصلي مد ډولونه)

اصلي مد پر درې ډوله دی :-

**۱**- لومړی ډول هغه مد دئ چي د وصل او وقف په دواړو حالتونو کي پاته وي لکه : ﴿ مَـٰلِكِ﴾ البته نوموړي مد کله د لفظ په سر کي راځي لکه مخکنۍ مثال او کله په پای کي راځي لکه : ﴿ وَضُحَىٰهَا ﴾ .

**۲**- دوهـم ډول هغه مـد دئ چـي د وقف پـه حـالت کـي وي او د وصـل پـه حالت کـي نـه وي لــکــه : ﴿ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ .

**۳**- دریم ډول هغه مد دئ چي د وصل په حالت کي وي او د وقـف پـه حـالت کـي نـه وي لکه : ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ﴾ او ﴿ بِهِۦ بَصِيرًا ﴾.

یادونه : په اصلي مد کي دریم ډول مد د تجوید د علماؤ له آنده د مد صلې په نامه هم یادیږي .

## (مــد صله)

مد صله هم په خپل ځان کي ډولونه لري چي تفصیل یې په لاندي ډول دی :-

لومړی باید هغه حرف وپېژندل سي چي نوموړی مد پرې کیږي د غه حرف چي مد صله پر کیږي د هاء کنایة په نـامه یادیږي .

ځکه هاء ځانته ډولونه لري د لته هغه هاء مراد نه ده چي د کلمې د اصل څخه وي او نه هغه هاء مراد ده چي د مونث مفرد لپاره ضمیر وي بلکي د لته هغه هاء مراد ده چي د مذکر غائب لپاره ضمیر وي په حقیقت کي هاء کنایة څو حالتونه لري چي د لاندي حالتونو څخه عبارت دي :-

**دکنایة هاء حالتونه**:کنایة هاءڅلور حالتونه لري چي هر حالت یې ځانته بېل کیفیت او بېل حکم لري چي تفصیل یې په لاندي ډول دئ:-

**لومړی حالت** : دا چي هاء په داسي ځای کي شتون لري چي مخکنۍ او وروستنۍ توري یې حرکت لرونکي وي .

**لکه**: ﴿بِهِۦ بَصِيرًا﴾ او ﴿إِنَّهُۥ كَانَ تَوَّابًا﴾.

**حکم یي** : هاء کنایة چي په دغه حالت کي شتون و لري حکم یې دا دئ چي د دوو حرکتونو په اندازه وقف پر وسي یعني که دغه هاء پېښ درلودئ د واو په اندازه دي کش سي او که یې زېر درلودی د یاء په اندازه دي کش سي ، په دې شرط چي وروسته یې همزة نه وي راغلې که یې وروسته همزة راغلې وه حکم به یې وروسته راسي دا صله د منفصل مد له ډلي څخه ده البته د دغه حالت څخه درې ځایونه استثناء دي چي په لاندي ډول دي :-

**لومړی ځای** : لومړی ځای د الله ﷻ په دې قول کي د ﴿ارجه﴾ لفظ دئ : ﴿قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ وَأَخَاهُ﴾ چي په سورة اعراف کي دئ او بل د الله ﷻ په دې قول کي چي په سورة شعرآء کي دئ : ﴿قَالُوٓاْ أَرۡجِهۡ وَأَخَاهُ﴾ په دغه دواړو ځایونو کي هاء وړغندی لرونکې ویل کیږي مد نه پرې کیږي .

**دوهم ځای** : دوهم ځای د ﴿القه﴾ لفظ دئ چي مد نه پر کیږي بلکي وړغندی لرونکې ویل کیږي د الله ﷻ په دې قول کي : ﴿فَأَلۡقِهۡ إِلَيۡهِمۡ﴾ په سورة نمل کي .

**دریم ځای** : دریم ځای د [ یرضه ] لفظ دئ دالله ﷻ په دې قول کي :- ﴿وَإِن تَشۡكُرُواْ يَرۡضَهُ لَكُمۡۗ﴾ .

## ( د هاء کنایة دوهم ، دریم ، او څلورم حالت )

**دوهم حالت**: دا چي هاء کنایة په داسي ځای کي شتون ولري چي مخکي او وروسته دواړه توري یې وړغندي لرونکي وي لکه:-

﴿شَهۡرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ﴾ په سورة بقرة ۱۸۵ شمېره آیة کي .

**حکم یي** : د نوموړي هاء حکم دادئ چي د ټولو علماؤ په آند مدصله نه پر کیږي .

**دریم حالت** : دا چي هاء کنایة په داسي ځای کي شتون ولري چي مخکنۍ توری یې حرکت لرونکی وي او وروسته توری یې وړغندی لرونکی وي لکه : ﴿تَبَٰرَكَ ٱلَّذِي بِيَدِهِ ٱلۡمُلۡكُ﴾ په سورة ملک کښي .

**حکم یي** :د نوموړي هاءحکم هم د دوهم حالت په څېر دی یعني صلة نه پر کیږي ځکه د غیر قانوني ساکینینو یوځای والی منځته راځي چي تفصیل به یې وروسته راسي .

**څلورم حالت** : داچي هاء کنایة په داسي ځای کي شتون ولري چي مخکنۍ توری وړغندۍ لرونکی وي او وروسته توری

يې حرکت لرونکی وي لکه :- ﴿ ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ هُدًى لِّلۡمُتَّقِينَ ﴾ په سورة البقرة کې .

**حکم يې** : د نوموړي هاء حکم دا دئ چې د حفص رحمة الله عليه په آند صلة نه پرې کيږي او پاته علماء صلة پرې کوي مګر حفص رحمة الله عليه په دغه ډول ځايونو کې پر يوه ځای باندي صلة کوي چې د لاندي ځای څخه عبارت ده :-

﴿ يُضَٰعَفۡ لَهُ ٱلۡعَذَابُ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَيَخۡلُدۡ فِيهِۦ مُهَانًا ﴾ په سورة فرقان ٦٩ شمېره آية کې ، حفص رحمة الله عليه په دغه ځای کې

د صلې کولو لامل دا بولي چې په دې ځای کې د ګمراه بيان دئ صله کول ورسره ښايي چې ښه بدي يې څرګنده سي .

## ( د صلة مد ډولونه )

صلة دوه ډوله ده چې عبارت ده : **١- قصيره صلة [ کوچنی صلة ]** **٢- طويلة صلة [ اوږده صلة ]** .

**١- قصيره صلة** : کله چې د[ هاء ]څخه مخکې او وروسته متحرك توری وي مګر وروسته يې قطعي همزة نه وي لکه : ﴿ لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ ، مَا نَفۡقَهُ كَثِيرًا ﴾ قصيره صله پرې کيږي ، د مد اندازه يې يو الف ده .

**٢- طويلة صلة**: هغه مد ته ويل کيږي چې تر هاء ضميريه وروسته قطعي همزة راغلې وي لکه : ﴿ مِّنۡ عِلۡمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَ ، قَوۡمُهُۥٓ أَنِ ٱضۡرِب ﴾ د مد اندازه يې دوه نيم الفه ده ، دا چې قطعي همزة کومه همزة ده ؟ وروسته به يې د ډولونو سره په تفصيل بيان راسي ، د مد دوهم ډول عبارت دی د مد فرعي څخه :-چې انشاالله په راتلونکي عنوان کې به راسي....

## ( فرعي مد )

**فرعي مد** هغه مد ته وايي چې تر اصلي مد زيات مد پرې وسي د هغه سبب له امله چې وروسته يې شتون لري چې د همزة او سکون څخه عبارت دي لکه : ﴿ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ، جَآءَ ﴾ ، د مد فرعي اندازه درې يا درې نيم الفه ده .

**د مد د سببونو وېش** : د مد سببونه پر دوه ډوله دي چې د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :-

**لومړی ډول** : لفظي سببونه دي چې د همزة او سکون څخه عبارت دي او ځکه همزة او سکون د مد سببونه ټاکل سوي دي چې د مده د توري څخه وروسته چې همزة راسی همزة سخت او قوي توری دئ او د مد توري کمزوري توري دي نو د همزې د له منځه تللو وېره وه ځکه نو مد پرې کوو تر څو همزة په سمه توګه ادا سي او په آواز کښې قوت راسي ، سکون ځکه د مد سبب دئ چې د دوو ساکنو تورو يو ځايوالی راځي او د دوو ساکنو تورو يو ځای والی د لوستلو پر مهال پر ژبه باندي د روند دئ نو ځکه مد پر کوو چې د غه مد بېلوونکی دی .

**دوهم ډول** : معنوي سبب دی لکه چې د تعظيم او درنښت لپاره تر اصلي مد زياتوالی رامنځته سي لکه : ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ چې د دغه منفصل مد قصر وسي که څه هم دغه کړنه د شاطبيې په حواله حفص رحمة الله عليه روا نه بولي مګر د طيبة النشر په حواله جائز ده .

## (د فرعي مد اقسام)

د مدفرعي اقسام ډېر دي دلته یې بحث په ۹ قسمو کیږي :-

**۱:- مدمتصل** : هغه مد ته ویل کیږي چي حروف مده راغلي وي ساکن وي او ماقبل یې له خپله جنسه وي او همزة یې

د عین د سرپه شان وي ، د مثال په ډول :- ﴿ جَآءَ ، شَآءَ ، سِيٓءَ ﴾ ، ځکه متصل ورته ویل کیږي چي همزة او حرف مد دواړه

په یوه کلمه کي دي .

**د متصل مد حکم** : لکه مخکي چي مو وویل متصل مد کول واجب دی یعني پر ښودونکی یې مسؤل دئ ځکه چي متصل مد

د ټولو علماوو په اتفاق واجب دئ او امام جزري رحمة الله علیه فرمایلي دي چي د متصل مد قصر ما په هیڅ ځای کي نه

دئ موندلی ، نو مد واجب هم ورته ویل کیږي .

**۲:- مدمنفصل** : هغه مد ته ویل کیږي چي تر حروف مده وروسته همزة د الف یا د لکړي په شکل وي ، ځکه منفصل ورته ویل

کیږي چي همزة اوحرف مد په جلاجلا کلمو کي نغښتي دي، لکه[ بِمَآ أُنزِل، فِيٓ أَنفُسِكُمۡ ]، نوموړي ته مد جائز هم ویل کیږي.

د متصل او منفصل مدونو توپیر :-

۱- د پیوست مد د مد علامه پنډه ﴿ ﴾ او د ناپیوست مد علامه نری ﴿ ﴾ وي .

۲- د پیوست مد همزة یعني د مد سبب د عین د سر په شان [ء] وي او د نا پیوست مد همزة یعني د مد سبب د الف په شان

﴿ اَ ﴾ وي ، لکه : ﴿ شَآءَ، جَآءَ، قُولُوٓاْ ءَامَنَّا ﴾ .

۳- په پیوست مد کښي حرف مد او سبب د مد دواړه په یوه کلمه کښي وي لکه : ﴿ جَآء، سُوٓءَ ، سِيٓءَ ﴾ او په نا پیوست

مد کښي حرف مد په یوه کلمه کښي وي او د مد سبب یې په بله کلمه کښي وي لکه :﴿ فِيٓ أَنفُسِكُمۡ ،وَمَآ أُنزِلَ ﴾ .

**۳:-مد لازمي کلمي مخفف** : هر کله چي تر حروف مده وروسته ساکن حرف راسي په دې شرط چي د دغه ساکن حرف سکون

اصلي وي عاریضي نه وي ، لکه:- [ءَآلۡـَٔـٰنَ] ، نوموړی مد په ټول قران الکریم دا غه یو ځای دی ، مخفف ( سپک ) .

**۴:- مد لازمي کلمي مثقل** : هر کله چي تر حروف مده وروسته مشدد حرف په داغه کلمه کي راسي، لکه:- [وَلَا ٱلضَّآلِّينَ،دَآبَّة]

او داسي نور.... مثقل ( دروند ) .

## (حروفِ مقطعات)

**حروفِ مقطعات**:- حروفِ مقطعات ۱۴حروف دي ، چي عبارت دي:-

له ( الف ، المیم ، النون ، القاف ، الکاف ، الطاء ، اللام ، العین ، الحاء ، الراء ، الصاد ، الهاء ، الیاء ، السین ) .

چي مجموعه یې په داسي ډول ده ( مَنْ قَطْعَکَ صِلْهُ سُحَیْرًا ) .

د نوموړي حروفو نه معنٰی او نه هم تلفظ په نورو حروفو کي دا خیلېدای سي ، ځکه ورته مقطعات ویل کیږي چي دنورو

حروفو څخه جلا دي ، حروفِ مقطعات پر دوو برخوووېشل شوي دي:-

**۱:-** هغه حروف چي په تلفظ کي دوه دوه حروف راځي لکه:- طا ، یا ، را ....

**۲:-** هغه حروف چي په تلفظ کي دري دري حروف راځي لکه:- سین ، صاد ، عین ....

**۵:-مدلازم حرفي مثقل:** هرکله چي تر حروف مده وروسته د حروف مقطعاتو څخه هغه حروف راسي چي په تلفظ کي دري دي او مشدد وي د لته نو پر دغه حرف مد لازم حرفي مثقل کيږي ، لکه:- (الٓمٓ)...

**۶:- مدلازم حرفي مخفف** :هر کله چي تر حروفِ مده وروسته د حروفِ مقطعاتو څخه هغه حروف راسي چي په تلفظ کي دوه دوه حروف څني جوړيږي، ساکن وه مشدد نه وه دلته نو مد لازم حرفي مخفف کيږي، لکه:- د سورت یوسف په سر کي ( الرا ).

**۷:- مدلازمي:** و هغه مد ته ویل کیږي چي د مده یا د لین د توري څخه وروسته لازمي سکون راغلئ وي .

لکه :- ﴿ نٓ وَٱلۡقَلَمِ، الٓمٓ ، ﴾ .

**۸:- عارضی مد :** عارضي مد و هغه مد ته ویل کیږي چي د مد سبب یې عارضي وي یعني د مد د توري څخه وروسته سکون عارضي وي یعني د وقف له کبله منځ ته راغلی وي لکه : ﴿ نَسۡتَعِينُ ،خَـٰطِـِٔينَ ، مُسۡتَهۡزِءُونَ، ٱلرَّحِيمِ ﴾ د وقف په حال کي .

د عارضي مد اندازه : د مد په اندازه کي یې دري طریقي سته :-

**لومړی طریقه** :- داچي طول پکښي وسي یعني درې الفه مد پر وسي چي شپږ حرکته کیږي.

**دوهمه طریقه** :- داچي توسط پکښي وسي یعني څلور حرکته مد پر وسي .

**دریمه طریقه** :- داچي قصر پکښي وسي یعني دوه حرکته مد پرې وسي البته دغه عارضي مد یوازي د وقف یعني د دریدو په وخت کښي راځي .

د مد عارض وجوهات څلور حالات سورة الفاتحه :-

| فصل كل | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كلمه | الرجیم | الرحیم | العالمین | الرحیم | یوم الدین |
| موقوف علیه حرف | میم مکسوره | میم مکسوره | نون مفتوح | میم مکسوره | نون مکسوره |
| ضربي وجوهات | ×۴ | ×۱۶=۴ | ×۴۸=۴ | ×۱۹۲=۳ | ×۷۶۸ =۴ |
| كلمه | نستعین | المستقیم | الضالین | | |
| موقوف علیه حرف | نون مضموم | میم مفتوح | نون مفتوح | | |
| ضربي و جوهات | ×۵۳۷۶=۷ | ×۱۶۱۲۸=۳ | ۴۸۳۸۴=۳ | | |

ستاسو ورور احمدیاسیر د دعاء په امید دئ

| وصل كل | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كلمه | الرجيم | الرحيم | العالمين | الرحيم | يوم الدين |
| موقوف عليه حرف | ميم مكسوره | ميم مكسوره | نون مفتوح | ميم مكسوره | نون مكسوره |
| ضربي و جوهات | | | ×۳ | ×۱۲=۴ | ×۴۸ =۴ |
| كلمه | نستعين | المستقيم | الضالين | | |
| موقوف عليه حرف | نون مضموم | ميم مفتوح | نون مفتوح | | |
| ضربي و جوهات | ×۳۳۶=۷ | ×۱۰۰۸=۳ | ۳۰۲۴=۳ | | |

| فصل اول وصل ثاني | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كلمه | الرجيم | الرحيم | العالمين | الرحيم | يوم الدين |
| موقوف عليه حرف | ميم مكسوره | ميم مكسوره | نون مفتوح | ميم مكسوره | نون مكسوره |
| ضربي و جوهات | ×۴ | | ×۱۲=۳ | ×۴۸=۴ | ×۱۹۲ =۴ |
| كلمه | نستعين | المستقيم | الضالين | | |
| موقوف عليه حرف | نون مضموم | ميم مفتوح | نون مفتوح | | |
| ضربي و جوهات | ×۱۳۴۴=۷ | ×۴۰۳۲=۳ | ۱۲۰۹۶=۳ | | |

| وصل اول فصل ثاني | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كلمه | الرجيم | الرحيم | العالمين | الرحيم | يوم الدين |
| موقوف عليه حرف | ميم مكسوره | ميم مكسوره | نون مفتوح | ميم مكسوره | نون مكسوره |
| ضربي و جوهات | | ×۴ | ×۱۲=۳ | ×۴۸=۴ | ×۱۹۲=۴ |
| كلمه | نستعين | المستقيم | الضالين | | |
| موقوف عليه حرف | نون مضموم | ميم مفتوح | نون مفتوح | | |
| ضربي و جوهات | ×۱۳۴۴=۷ | ×۴۰۳۲=۳ | ۱۲۰۹۶=۳ | | |

**۹:- مدبدل** :هغه مد ته ويل كيږي چي همزة يې پر حرف مد مخكي وي او دوه حركته مد پر كيږى لكه : ﴿ أُوتُواْ ، ءَادَمَ ، ءَازَرَ ﴾ .

**دمدبدل دنوم ايښودلو لامل** : مد بدل ته له دې امله مد بدل ويل كيږي چي پـه زياتو ځاينو كـي حرف مـد د هـمـزة ځخه بـدل راغلى وي د اكثـريت په اعتبار سره مد بدل ورته ويل كيږي كه څه هم په ځينو ځاينو كي حرف د همزة څخه بدل نه وي راغلى لكه :﴿ قُرۡءَانَ ﴾ په سورة اسراء ۷۸ شـمېره آية كي او لكه : ﴿ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴾ د سورة بقرة په ۴۰ شمېره آية كي .[7]

## ((وروستني مدونه ( د مد لقبونه ))

**۱:- تمكين**:- و هغه مد ته وايي چي په يوه ځاى كښي دوې ياء گاني وي لومړى يې متحركه مشـدده او دوهمه يې سـاكنه وي .

لكه: ﴿ عِلِّيِّينَ ، وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ ﴾ او د مد اندازه يې دوه حركته ده ، د تمكين مـد ته ځـكه د تمكين مد ويل كيږي چـي تمكـين د قدرت پـه معنى دئ او مشدد والي د ﴿ ياء ﴾ و يـاء تـه دا قـدرت وركـوي چـي مـد پـرې وسـي .

**۲:- عوض**: و هغه مد ته ويل كيږي چي پر تنوين د نصب يعني دوو زورو باندي وقف وسي نوموړى تنوين په الف سره بدليږي او

7 : نهاية القول المفيد في علم التجويد ، غاية المريد في علم التجويد ص : ۹۹ ، غيث النفع في القراءات السبع .

دوه حرکته مد پرې کيږي لکه : ﴿ مَوۡبِلاً ، هُدًى ، قَرِيبًا ﴾ چي دغه کلمې د وقف په حال کي ﴿ مَوۡبِلا ، هُدًا ، قَرِيبا ﴾ ويل کيږي.

يوا ځي چي پر تاء تانيث يعني گردی تاء ﴿ ة ﴾ باندي چي دوه زوره راسي هغه دوه زوره په الف سره نه بدليږي بلکي د غه تاء تانيث پـه ﴿ ه ﴾ سره بدليږي ، لکه : ﴿ بَقَرَةً ﴾ چي د وقف په وخت کښي ﴿ بَقَرَهْ ﴾ ويـل کـيږي .

**۳:- دتعظيم مد** : چي د درنښت لپاره وي لکه : ﴿ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَـٰنَكَ ﴾ ، همدا ډول دې مد ته د مبالغې مد هم وايي البته د غـه مـد د هغه چا پر مذهب باندي دی چي د منفصل مد قصر کوي ، النشر چي کومه حواله رانقل کړې ده په هغه کي د امام حفص رحمة الله عليه پر مذهب دغه مد نسته مگر الطيبة چي د امام حفص رحمة الله عليه مذهب رانقل کړې هغه ښيي چـي دده پر مذهب نوموړی مد سته .

**۴:- مد فرق**:- وهغه ته ويل کيږي چي د استفهام او د خبر د توپيرولو په موخه منځته راغلی وي لکه : ﴿ قُلۡ ءَآلذَّكَرَيۡنِ ﴾ الانعام ۱۴۳ آيـة او داسـي نـور.... [8]

**۵:- صلة**:- دصلة په اړه تفصيلي بيان مخکي تېـر سـو .

## (وقـــف)

وقف يو ثابت سوئ قانون دی .

**۱:-** په آيت ،سره دليل ( وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلاً ) د دې تفسيرحضرت عـلي (رض) په ، مُعْرِفَةِ التَّجْوِيْدِ اَوْ مُعْرِفَةِ الْوَقُوْفِ ، سره وکړی يعني پيژندل د تجويد دي او پيژندل د وقفو دي دا دی وقف پکښي ذکر سو.

**۲:-** حديث شريف سره دليل حضرت عبدالله بن عمر ﷺ وايي چي پر پيغمبر ﷺ باندي کله قرآن شريف نازل سو ده مبارک بـه موږ ته وويلی او بيا به موږ پوښتنه ور څخه وکړه چي موږ پر کومو ځايو باندي وقف وکړو ده مبارک به هغه ځايونه را ښوول .

**دوقف لغوي معنی** : وقـف پـه لـغـت کـښـي بـنـدوالي ، دربـدل ، تـه وايـي .

**دوقف اصطلاحي معنی** : وقف په اصطلاح کښي د کلمې وروستی توری ساکنول دي چي د سـاه او ږغ پـرېـوالـی ورسره کـيږي .

د وقف او وصل ترمنځ حالت ته سکته وايي يعني د وقف په وخت کې ساه او ږغ دواړه پـرې کـيږي او نـوې سـاه اخستل کيږي مگر د وصل په وخت کې ساه او ږغ نـه پـرې کـيږي او نـه سـاه تـازه کـيږی .

**دوقف حکم** : د قـرانکريـم پـر الـفـاظـو وقـف کـول جـائـز دي الـبـته چـي مـانع شـتـون ونـه لـري يـعـنـي پـر داسـي ځـای وقـف کـول نـه وي چــي معـنٰـی تـه تــاوان پــکـښــي رسـيــږي .

## ( دوقف ډولونه )

وقف پر څلور ډوله دئ چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :-

**۱ - اختباري وقف ، ۲ - اضطراري وقف ، ۳ - انتظاري وقف ، ۴ - اختياري وقف .**

8 : من كتاب الاضاءة ص : ۲۴ بتصرف . النشر ج : ۱ ص : ۴۵۸

**داختباري وقف تعريف**: اختباري وقف د هغه وقف څخه عبارت دئ چي قاري پر داسي ځای باندي وقف وکړي چي اصلاً د وقف ځای نه وي بلکي د نوموړي وقف څخه يې موخه دا وي چي وقف د تعليم لپاره وکړي او يا دغه ځای د اختبار لپاره وي البته دغه وقف په اثبات د حرف وکړي .

لکه :- ﴿ ايدي ﴾ لفظ په ﴿ واذكر عبدنا ابراهيم و اسحق و يعقوب اولي الايدي ﴾ چي وقف په اثبات سره سوی دئ يعني وروستی ياء حذف سوې نه ده بلکي ثابته پاته سوې ده .

او يا وقف په حذف سره سوي وي لکه :-﴿ واذكر عبدنا داود اذ الايد﴾ چي دلته هم د ايد پر لفظ باندي وقف سوی دئ البته ياء حذف سوې ده ، و نوموړي وقف ته له دې امله اختباري وقف ويل سوی دئ چي قاري د دې وقف په مټ اوريدونکي ته دجواب اخبار (خبر ) ورکوي .

**داضطراري وقف تعريف** :و هغه وقف ته ويل کيږي چي لوستونکئ دساه تنگی یا د نورو ستونزو له امله وقف ته ضرورت پيداکړي په دې صورت کې لوستونکي ته وقف کول جائز دي مگر هڅه دي وکړي چي پر هغه کلمه باندي وقف وکړي چي د معنٰی فساد پکښي منځته رانسي او د وقف څخه وروسته دي له يوې مخکنی مناسبي کلمې څخه پيل وکړی لکه د ضرورت په وخت کې وقف د ﴿ ٱلۡفَحۡشَآءِ ﴾ پرکلمه باندي د ﴿ وَيَنۡهَىٰ عَنِ ٱلۡفَحۡشَآءِ ﴾ په مبارك آيت کې لوستونکي ته پکارده چي د اضطرار د لري کيدو وروسته نوموړی مبارك آيت له سر څخه شروع کړي .

يعني د ﴿ وَيَنۡهَىٰ عَنِ ٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِ وَٱلۡبَغۡيِۚ ﴾ څخه بايد شروع وکړل سي .

و نوموړي وقف ته ځکه اضطراري وقف ويل سوی دئ چي اضطرار اړتيا ته وايي دلته هم قاري وقف کولو ته اړ سوی دئ .

**دانتظاري وقف تعريف** : د هغه وقف څخه عبارت دئ چي پر داسي کلمة باندي وقف وکړل سي چي د قاريانو ترمنځ يې په تلفظ کي اختلاف وي د دې لپاره وقف وکړي تر څو دا په ډاگه سي چي قاري د کوم قراءة تقليد کوي .

انتظاري له دې امله ورته ويل سوی دئ چي استاذ شاگرد ته انتظار کوي چي کوم ډول قراءة وايي .

**داختياري وقف تعريف** : د هغه وقف څخه عبارت دئ چي لوستونکی په خپله خوښه پر يو ځای باندي وقف وکړي پرته له دې چي د سوال جواب ووايي او يا وقف کولو ته اړسي .

ځکه ورته اختياري وقف ويل کيږي چي لوستونکی نوموړی وقف په خپل اختيار باندي کوي .

## ( داختياري وقف ډولونه )

پاته دي نه وي چي نوموړي وقف پر ۵ ډولونو باندي وېشل سوی دئ چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :-

**۱- تام وقف ، ۲- حسن وقف ، ۳- کافي وقف ، ۴- قبيح وقف ، ۵- صحيح .**

**۱- تام وقف** : هغه وقف ته ويل کيږي چي کلام لفظاً او معناً د دغه وقف په پای سره پوره کيږي او د ما بعد سره تعلق ونه لري .

لکه :- ﴿ قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ۝١ ﴾ .

**۲- حسن وقف** : و هغه وقف ته ويل کيږي چي کلام د معنٰی له پلوه پوره وي مگر د لفظ په لحاظ د ما بعد سره تړاو ولري .

پر هغه باندي وقف کول ښه دي مګر احسن ﴿ ډېرښه ﴾ وصل له ما بعد سره دئ لکه ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ﴾ چي وقف د لله په کلمه باندي حسن ﴿ ښه ﴾ دئ مګر وصل د ﴿ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ سره احسن ﴿ ډېرښه ﴾ دئ .

**۳- کافی وقف** : و هغه وقف ته ویل کیږي چي کلام د لفظ له پلوه پوره وي مګر د معنٰی په لحاظ د ما بعد سره اړه ولري چي وقف پر هغه کافي او ښه دئ لکه په ﴿ مِن قَبْلِكَ وَبِٱلْأَخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ په دې ځای کښي وقف کافي او ښه دئ .

**۴- قبیح وقف** : و هغه وقف ته ویل کیږي چي کلام د معنٰی او لفظ له پلوه د ما بعد سره ټینګه او کلکه اړه ولري او د وقف له کبله د دې مبارك آیت په معنٰی کښي فاحش ﴿ بد ﴾ بدلون منځته راځي لکه په ﴿ وماخلقت الانس والجن الالیعبدون ﴾ کي چي په دې مبارك آیت کي د و ﴿ وَالْاْنْس ﴾ پر کلمه باندي وقف وسي دا وقف قبیح دئ .

**۵- صحیح وقف** : چي پر رموز باندي وقف وسي لکه:- (ط ، ج ، ص ) او داسي نور...

## ( د وقف په حالتونو کي بدلون )

د وقف په حالتونو کي بدلون پر څلور ډوله دئ چي د لاندي ځایونو څخه عبارت دي :

**۱- وقف په اسکان سره:** وقف په اسکان سره د کلمې د وروستي توري د ساکنولو څخه عبارت دئ البته چي حرکت ولري لکه:- ( ك ) په﴿ فسبح بحمدربك ﴾کي چي ﴿ ك ﴾ زور لري په حالت د وقف کي﴿ فسبح بحمد ربكْ ﴾ویل کیږي یعني په وړغندي سره ویل کیږي.

**۲- وقف په ابدال سره** : د حرف په بل حرف سره د بدلولو څخه عبارت دئ لکه د تانیث تاء بدلول په ها باندي لکه : ﴿صَلواة ﴾ چي د وقف په حالت کي حالت کي صلواهْ تلفظ کیږي ، او یاد دوو زورو بدلول دي په الف سره لکه : ﴿ رَحِيمًا ، شُكُورًا ﴾ چي د وقف په حالت کي ﴿ رَحِيْمَا او شَكُوْ رَا ﴾ ویل کیږي .

**۳- وقف له اشمام سره** : اشمام د تجوید په علم کي عبارت دئ د توری له ساکنولو څخه د وقف په حالت کي سره د شونډو د اشارې د پېښ ولوري ته وي لکه په آخرني ﴿ ن ﴾ د ﴿ نَسْتَعِينُ ﴾ کي چي د وقف په وخت کي شونډي پرې راټولیږي او د ضمې لوري ته بې له ږغه څخه اشاره کیږي .

**۴- روم** : د حرکت د دریمې برخي له تلفظ کولو څخه عبارت دئ ، یعني دا چي د وقف په وخت کي د حرکت دوه ثلثه(دریمې )ساقط کړي او یو ثلث ( دریمه ) تلفظ کړي .

**یادونه** : اصل په وقفونو کښي اسکان دئ پاته دي نه وي چي روم او اشمام په اصلي حرکت کښي تر سره کیږي نه په عارضي حرکاتو کښي او همدا ډول پر ګردی تا باندي هم روم او اشمام نه کیږي یعني پر عارضی حرکاتو او ګردی تاء باندي اشمام او روم نا جائز دئ بله خبره داده چي روم په ضمه او کسره دواړو کي تر سره کیږي او اشمام یوازي په ضمه کي اجراء کیږي .

## ( د وقف علامې )

د وقف ځایونو ته پاملرنه د تجوید د علم له مهمو برخو څخه شمېرل کیږي د وقف علامې په لاندي ډول دي :-

**۱-م** : د لازم وقف علامه ده د وقف نه کولو په صورت کښي په معنٰی کي نیمګړتیا یا تاوان پیداکیږي .

**۲-ط** : د مطلق وقف علامه ده یعني وقف کول احسن دئ یعني ډېره ښه دئ له دې ځایه ځخه باید تېر نسو .

**۳-ج** : د جائز [ کافي ] وقف علامه ده په دې ځای کې وقف او وصل دواړه روادي مګر وقف ښه دئ .

**۴-ز** : د مجوزو قف علامه ده چې وقف او وصل یې دواړه جائز دي مګرپه وصل سره ویل یې ښه دي .

**۵-ص**: د مرخص وقف علامه ده په ځینو ځایونو کې چې آیات شریف اوږد وي او نفس [ ساه ] د لوستلو د دوام توان ونه لري-کولای سي چې په دې کلمة باندي وقف وکړي بې له دې څخه چې لوستل سوې کلمة بیا تکرار سي .

**۶-لا** : د قبیح وقف علامه ده ځکه په دې ځای باندي په وقف کولو سره معنٰی توپیر کوي نو پکارده چې وقف ونه سي، که چیري د نفس دنه رسېدوله امله وقف وسو نو لازمه ده چې وقف سوې کلمه له سره شروع کړي مګر د آیات په آخر کې داحکم نه دئ.

**۷-ک** : د کذالك په معنٰی دئ یعني د مخکې آیات د حکم په شان دئ .

**۸-ق** : د اعلامه چې د ځینو علماوو په آند دلته وقف کول جائز دي خو وقف نه کول ښه دي .

**۹-قلا** : یعني وقفه مه کوئ .

**۱۰-قف** : یعني وقف وکړه .

**۱۱-صلي** : یعني وصل وکړه وصل تر وقف غوره دئ .

**۱۲-وقفه**: د اوږدې سکتې علامه ده او د قرأت د علم په اصطلاح کې سکته او وقفه سره قریب المعنٰی ﴿ په معنٰی کې نژدې دي ﴾ مګر په اصطلاح کې سکته وصل ته او وقفه وقف ته نژدې ده .

**۱۳-س** : د سکتې علامه ده چې ږغ یې د ساه څخه پریکوي .

**۱۴-﴿۝﴾**: دائره د مطلق آیات علامه ده که چیري فقط دا علامه وي وقف دي وکړل سي او که چیري پر سر یې ﴿ لا ﴾ وي بیا یې وصل هم جائز دئ .

**۱۵- ۵** : د نوموړي علامې حکم د دائرې د علامې د حکم په څېر دئ .

**۱۶-صل** : یعني وصل وکړه .

**۱۷- ۛ** :- د معانقه وقف علامه ده چې په حاشیه کې ﴿ مع ، یا معًا ﴾ لیکل سوی وي .

**معانقه** :- په لغت کې دغاړې کېدلو او یو د بل سره غېږ په غېږ کېدلو ته وایي .

مګر په تجوید کې کله چې دوه وقفونه څنګ پرڅنګ راغلي وي هغه ته معانقه وقف ویل کیږي .

**د معانقې حکم**:- حکم یې دادئ چې که چیري په اوله کلمه کې وقف وکړو دوهمه کلمة باید په وصل سره ولوستل سي .

د مثال په ډول ﴿ لَا رَيْبَ ۛ فِيهِ ۛ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ په هر ځای چې تلاوت کونکئ و دریږي پر هغه بل ځاي به نه دریږي او نه به پر دواړو ځایونو وقف کوي او نه به پر دواړو ځایو باندي وصل کوي .

## ( د معانقې شمېر په قرانکریم کې )

دا چې معانقه به په قرآنکریم کې څو ځایه راغلې وي علماء یې په اړه په یوه خوله نه دي بلکې د متقدمینو په آند معانقه په قرآنکریم کې شپاړس ځایه راغلې ده چې وروسته به یې ځایونه په ګوته سي او د متاخرینو علماؤ له آنده د دغه شپاړسو ځایونو تر څنګ اتلس ځایه نوره هم راغلې ده .

په لاندي جدولونو کې په لومړی جدول کې هغه شپاړس ځایونه مطالعه کړئ چې د متاخرینو او متقدمینو علماؤ پرې اتفاق دئ او په دوهم جدول کې هغه اتلس ځایونه مطالعه کړئ چې یوازې د متاخرینو علماؤ له آنده معانقه سته او د متقدمینو له آنده پر نوموړو ځایونو باندي معانقه نسته البته دغه جدولونه په خپل وارسره کتلای سئ:-

| هغه ځایونه چې یوازې د متاخرینو له آنده معانقه پرې کیږي | | | |
|---|---|---|---|
| شمېره | سورة | رکوع | آیات |
| ۱ | البقرة | ۱ | ۲ |
| ۲ | البقرة | ۱۱ | ٦٦ |
| ۳ | البقرة | ۸ | ۱۵۰ |
| ٤ | آل عمران | ۳ | ۳۱ |
| ٥ | المائدة | ٥ | ۳۱ |
| ٦ | الاعراف | ۲۱ | ۱٦۳ |
| ۷ | الاعراف | ۲۳ | ۱۷۲ |
| ۸ | الاعراف | ۲۳ | ۱۸۸ |
| ۹ | هود | ٤ | ٤٦ |
| ۱۰ | الفرقان | ۱ | ٤ |
| ۱۱ | القصص | ٤ | ۳٥ |
| ۱۲ | الاحزاب | ۸ | ٦۰ |
| ۱۳ | المؤمن | ۸ | ٦۹ |
| ۱٤ | الدخان | ۳ | ٤٤ |
| ۱٥ | الفتح | ٤ | ۲۹ |
| ۱٦ | الممتحنة | ۱ | ۳ |
| ۱۷ | الانشقاق | ۱ | ۱٤ |
| ۱۸ | القدر | ۱ | ٤ |

| هغه ځایونه چې د متقدمینو او متاخرینو علماؤ پرې اتفاق دئ | | | |
|---|---|---|---|
| شمېره | سورة | رکوع | آیة |
| ۱ | البقرة | ۲٤ | ۱۹٥ |
| ۲ | آل عمران | ۱۷ | ۱۷۱ |
| ۳ | المائده | ٦ | ٤۱ |
| ٤ | الاعراف | ۱۱ | ۹۱ |
| ٥ | التوبة | ۱۳ | ۱۰۱ |
| ٦ | ابراهیم | ۲ | ۹ |
| ۷ | الفرقان | ۳ | ۳۲ |
| ۸ | الفرقان | ٥ | ٥٥ |
| ۹ | الشعرآء | ۱۱ | ۲۰۸ |
| ۱۰ | الاحزاب | ۲ | ۱۳ |
| ۱۱ | الزخرف | ۱ | ۲ |
| ۱۲ | الدخان | ۱ | ۲ |
| ۱۳ | محمد | ۱ | ٤ |
| ۱٤ | الطلاق | ۲ | ۱۰ |
| ۱٥ | القلم | ۲ | ٤۰ |
| ۱٦ | المدثر | ۲ | ۳٦ |

**۱۸: وقف النبي(ص)**:- د نوموړي وقف چې په احادیثو کې یې د پیغمبر (ص) څخه ثبوت راغلی دی د دې ځای د صحابي څخه چې موږ په مسجد نبوی کې ناست وو چې پیغمبر ( ص ) تلاوت کوی چې د لته یې وقف وکړ -

- مـثـال يې ( فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّکَ وَاسْتَغْفِرْهُ ) النصر آية ۳ .

**۱۹: وقف جبرائيل:-** دا دغه معنٰی ورکوي چې جبرآئيل ( ع ) په تلاوت کولو کې ونبي کريم ( ص ) ته وقف کړی دی نو دا دوقف جبرآئيل په نامه يـاديـږي ، مثال يې ( قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ) آل عمران اية ۹۵ کې راغلئ دی .

**۲۰: وقف غفران:-** دا وقف د بـخـښـنـي پـه معنٰی دی يعني د دې آيـاتـونـو مـضـمـون او تـفـسـير د بـخـښـنـي ايـاتـونـه دي .

مثال يې ( أَوَلَيْسَ الَّذِى خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ بِقٰدِرٍعَلٰى أَنْ يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ ) يس اية ۸۱ .

**۲۱: وقف منزل :-** کله چې حضرت عثمان رضی الله تعالیٰ عنه ۷ کاتبان د قرآن الکريم لپـاره مقرره کـړه نومـوړو کـاتـبـانـو قـرآن عضيم الشان پـه اووه شپې او ورځې وليکی نو هره شپه او ورځ ته يې وقف منزل ويل کيږي ، کـوم چې د قـرآن الکريم ۷ منزله بـلل کـيـږي مـثـال يې پـه (سـورة يٰـس ( ۳۰ ) آيت ) کې دی .

## ( دوقف ګټې )

په وقف کولو کې زياتې ګټې نغښتي دي د مثال په ډول يو څو دانې يې په لاندي ډول وړاندي کوو :-

**لومړی** : ښکاره ده چې په يوه ساه سره ټوله مطلوبه تلاوت شونی نه وي وقف کول و تلاوت کونکي ته اجازه ورکوي تـر څو د نوي ساه په اخستلو سره د بيا لپاره تلاوت پيل کړي او که د وقف اجازه نوي نو تلاوت کونکي ته به تلاوت کول ګران کار سي .

**دوهمه ګټه** : که چيري تلاوت کـونـکـي تـه پـه تـلاوت کـي يـو ډول سـتـونـزه پېښه سـي کـولای سـي چـې د وقف پـه مټ خـپـله سـتـونـزه حـل کـړي او بـيـرتـه خـپـل تـلاوت پـيـل کـړي .

**دريمه ګټه:** وقف کول تلاوت کونکی د معنٰی د غلطئ څخه ژغوري د بيلګي په ډول که تلاوت کونکی پر لاندينې آيات باندي وقف و نه کړي په ښکاره غلطي ( لحن جلي ) کې به ښکېل سي : لکه ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ۝٧ لِلْفُقَرَآءِ ٱلْمُهَٰجِرِينَ ﴾ الحشر الاية ۷ - ۸ .

## ( وصـــل )

وصـل د دوو کلمو ربط يعني يـو ځای کولو ته وايي او د وقف ضد دئ يـا پـه بـل عـبـارت وصـل د دوو کلمو يـو ځای کولو تـه وايي پـه داسي ډول چـې ږغ ( آواز ) او سـاه پـرې نــه سي .

## ( سکـتــة )

سکتة د تلاوت په جريان کي د ساه اخستلو پرته د لږ وخت آواز بندولو ته وايي چې د غه آواز د يوې کلمې په ويلو سره بند کړي نـو مـوږ ويـلای سـو چـې پر دغه کلمه باندي سکته وسوه يا په بل عبارت د وقف او وصل منځنی حالت ته سکته وايي .

## ( د سکتې ډولونه )

سکتة پر دوه ډوله ده چې د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :

**۱:- معنوي سکتة** **۲:- لفظي سکتة** .

**۱- معنوي سکتة:** په کومو ځايو کښي چې د دوو کلمو د يو ځای کېدو سره په معنٰی کښي د التباس د واقـع کـېـدلو احـتمال وي پـه هغو ځايونو کښي چې کومه سکتة کيږي هغې سکتې ته معنوي سکته وايي .

**لکه:-** ﴿ وَلَمۡ يَجۡعَل لَّهُۥ عِوَجَاۜ ﴿سکتة ﴾ قَيِّمٗا لِّيُنذِرَ ، مِن مَّرۡقَدِنَاۜۗ ﴿ سکتة ﴾ هَٰذَا ، وَقِيلَ مَنۡۜ ﴿ سکتة ﴾ رَاقٖ ، كَلَّاۖ بَلۡۜ ﴿ سکتة ﴾ رَانَ ﴾ **په ټوله قرآنکریم کښې داغه څلور ځایه معنوي سکتة سته .**

**۲- لفظي سکتة :- کله کله سکتة د همزې دصفا او محقق ادا کولو په غرض سره کیږي دې سکتې ته لفظي سکتة وایي او د حفص ﴿ رح ﴾ په طریقه سره پـه قرآنکریم کي هیڅ ځای لفظي سکته نسته .**

## ( اجتماع ساکنین )

**( د دوو وړغندی لرونکو تورو یو ځای کېدل )**

**د ساکنینو اجتماع یعني د دووساکنو حروفو یو ځای کېدل چي په یـوه کلمة کي وي یا په دوو کلمو کي وي پر دوه ډوله دي چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي:-**

**۱:- علی حده ۲:- علی غیر حده .**

**۱- علی حده : علیٰ حده اجتماع دې ته وایي چي اول ساکن توری مده وي او دواړه ساکن توري په یوه کلمة کښي وي ، د ساکنینو دغه اجتماع علیٰ حده ده یعني پر خپله اندازه او حالت باندي برابره ده او دغه د ساکنینو اجتماع رواده لکه:** ﴿ ءَآلۡـَٰٔنَ ، الٓمٓ ۝١ ،وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ۝٧ تَعۡلَمُونَ ﴾ **.**

**البته د دې دوو شرطونو په شتون کښي او که یو د دې دوو شرطونو څخه موجود نه وي نو د ساکنینو اجتماع علیٰ غیر حده اجتماع ده نوموړي اجتماع جائز نه ده .**

**۲- علی غیر حده: علیٰ غیر حده دې ته وایي چي اول ساکن توری مده وي او دواړه ساکنه په یوه کلمة کښي نه وي او یا اول ساکن توری مـده نـه وي یـا دواړه سـاکنان په یوه کلمة کښي نه وي د غه د سـاکنینو اجتماع علیٰ غیر حـده اجتـماع ده یعني د خپل حالت او اندازې څخه وتلې او د غه د ساکنیـنو اجتماع نه ده جائز .**

## ( د ساکنینو علی غیر حده اجتماع د پاي ته رسېدو لاري )

**د ساکنینو علیٰ غیر حده اجتماع په څو لارو سره پاي ته رسیږي چي د لاندینیو لارو څخه عبارت دي :-**

**لومړی : که چیري په دوو ساکنو تورو کښي اول ساکن توری مده وو خو دوهم ساکن په بله کلمه کښي وو اول سـاکن یعني مـده تـوری حـذفـیږي ، لـکـه :** ﴿ أَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ ، وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ **.**

**دوهمه : که چیري پـه دوو ساکنو تورو کښي اول ساکن توری د جمعې میم وو ضمه(پېښ) ورکول کیږي لکه:**﴿ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِتَالُ ﴾**.**

**دریمه : که چیري په دوو ساکنو تورو کښي اول ساکن توری د لین واو وو البته دغه واو دجمع لپاره راغلی وو دغه واو ته هم ضمه ( پېښ ) ورکول کیږي ، لکه :** ﴿ فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ ﴾ **.**

**څلورمه : که چیري په دوو ساکنو تورو کښي اول ساکـن تـوری د حروف جرمِنْ وو یعني د مِنْ نون وو لومړی ساکن یـعني نـون تـه زور ورکـول کیـږي . لــکـــه :** ﴿ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَضۡلٖ ﴾ **.**

**پنځمه** : كه چيري په دوو ساكنو تورو كښي اول ساكن توری د ﴿ الٓمٓ ﴾ ميم وو هغه ته هم زور ور كول كيږي .

لكه : ﴿ الٓمٓ ۝ اللهُ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ .

**شپږمه** : كه چيري په دو ساكنو تورو كښي په پورتنيو صورتونو كښي يو لاهم نه وو نو بيا اول ساكن توري ته زېر وركول كيږي .

لكه : ﴿ قُلِ ٱدْعُواْ ٱللَّهَ ، أَوِ ٱدْعُواْ ٱلرَّحْمَـٰنَ ، إِنِ ٱرْتَبْتُمْ ، أَنذِرِ ٱلنَّاسَ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ﴾ .

## ( د همزې بيان )

همزة د هجاء د تورو څخه يو توری دئ چي كله د الف په بڼه ليكل كيږي او كله د عين د سر په څېر ليكل كيږي پر دوه ډوله ده چي د لاندي ډولو څخه عبارت دي :-

**۱-وصلي همزة** : هغه همزة ده چي د كلام په پيل كي ثابت پاتيږي ، په درج کې ساقطيږي او د وصل په حالت كي حذفيږي .

نوموړې همزة په اسم ، فعل او حرف دريو سرو كي راځي .

وصلي همزة په فعل كي : فعل پر درې ډوله دی چي د ماضي ، مضارع او امر څخه عبارت دئ .

وصلي همزة په ماضي او امر كي راځي او په مضارع كي نه راځي ، ماضي چي ثلاثي ، رباعي ، خماسي او سداسي راځي خو دغه همزة په خماسي او سداسي ماضي كي راځي د خماسي مثال لكه :-[ ان الله اصطفىٰ ءآدم ونوحا ].

د سداسي مثال لكه : -[ واذ استسقٰي موسىٰ لقومه ] .

وصلي همزة په امر كي راځي البته په ثلاثي ، خماسي او سداسي صيغو كي .

د ثلاثي مثال لكه : [ ادع الي سبيل ربک بالحكمة والموعظة الحسنة ] د خماسي مثال لكه : [ فقلنا اضرب بعصاک الحجر ] .

د سداسي مثال لكه : [ فقلت استغفروا ربكم انه كان غفارا ].

په فعل كي د وصلي همزې حكم : كومه وصلي همزةچي په فعل كي راسي هر ډول فعل چي وي يعني ماضي وي او كه امرو و دريم حرف ته يې كتل كيږي كه يې دريم حرف پېښ لرونكی وو د غه همزة به مضمومه وي لكه : [ اُدع ]اوكه يې دريم حرف زېر لرونكی وو د غه همزة به مكسوره وي لكه [ اضرب ] .

كه يې دريم حرف زور لرونكی وو د غه همزة زېر لرونكې راځي لكه : [ اِذْهَبْ ] .

**پاملرنه** : پاته دي نه وي چي كه په فعل كي دريم حرف زور لرونكئ وو همزة يې زېر لرونكې راځي او زور لرونكې نه راځي لامل يې دا دئ چي كه چيري زور لرونكې راسي د مضارع سره به ورته والی رامنځته سي يعني دغه نوموړی فعل به د مضارع څخه نه توپيريږي ځكه په مضارع كي وصلي همزة نه راځي .

وصلي همزة په اسم كي : وصلي همزة په اسم كي پر دوه ډوله راځي چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :-

**۱:- قياسي** **۲:-سماعي** .

**قياسي وصلي همزة** : قياسي وصلي همزة د خماسي او سداسي فعلونو په مصدرنو كي راځي د خماسي مثال لكه :[ وحرموا مارزقهم

الله افتراء علي الله ] او د سداسي مثال لکه : [ والله عزیر ذوانتقام ] .

**د قیاسي وصلي همزې حکم** : پـه دغـو ځـایـونـو کي چي همزة په پیل کي راسي کسره یې واجـب ده .

**سماعي وصلي همزة** : سماعي وصلي همزة په قرانکریم کي په اوو اسمونو کي راځي چي د لاندي ځایونو څخه عبارت دي :

﴿ ابن ـ ابنة ـ امرؤ ـ امرأة ـ اثنین ـ اثنتین ـ اسم ﴾ مـثـالـونـه یې پـه لانـدي ډول دي .

| د سماعي وصلي همزې مثالونه | | | |
|---|---|---|---|
| کلمة | مثال | سورة | آیات |
| ابن | [ اسمه عیسي ابن مریم وجیها في الدنیا والاخرة ] | آل عمران | ٤٥ |
| ابنت | [ ومریم ابنت عمران ] | التحریم | ١٢ |
| امرؤ | [ ان امرؤ هلک لیس له ولد ] | النسآء | ١٢٨ |
| امرآت | [ وضرب الله مثلا للذین ءامنوا امرت فرعون ] | التحریم | ١١ |
| اثنین | [ اثنان ذوا عدل ] | المائدة | ١٠٦ |
| اثنتین | [ فانفجرت منه اثنتا عشرة عینا ] | البقرة | ٦٠ |
| اسم | [ ومبشرا برسول یاتي من بعدي اسمه احمد ] | النصف | ٦ |

**د سماعي وصلي همزې حکم** : د نـومـوړي هـمـزې حـکـم دا دی چـي پـه ټـولـو ځـایـونـو کـي بـه زېـر لرونـکـې راځـي .

یـادونـه : قیاسي وصلي همزة و دې تـه وایـي چي د قانون لمخي همزة په لفظ کي راغلې وي او دلیل پرې موجود وي او سماعي وصلي همزة ودې ته وایي چي د قانون لمخي منځته نه وي راغلې بلکي د عربو څخه یې اورېدنه سوې وي .

وصلي همزة په حرف کي : وصلي همزة په حرف کي یوازي پـه ال کي راځـي .

کلمة کله پرته له ال څخه راتلای سي او کله نه سي راتلای چي مخکي یې پوره بیان وسو .

پـه حـرف کـي د وصـلي هـمـزې حـکـم : پـه حرف کي چي وصلي همزة راسي تل به زور لرونکی وي بل هیڅ حرکت نه قـبـلـوي .

## ( قطعي همزة )

**۲:- قطعي همزة** : هغه همزة ده چي د کلام په درج کي نه حذفیږي بلکي په پیل کي هم ویل کیږي او په وصل کي هم ویل کیږي

لکه همزة د ﴿ أَنۡعَمۡتَ ﴾ ځکه ورته قطعي همزة ویل کیږي چي نوموړې همزة د وینا پر مهال حروف قطعه کـوي یعنی پـرېکـوي

یې ، همدا ډول نوموړې همزة زور لرونکې راځي لکه پورتنۍ مثال، زېر لرونکي راځي لکه [ انا ] ، پېښ لرونکي راځي لکه:[ أُتوا ]

، د کلمې په سر کي راځي لکه پـورتـنـي مثـالونه یې ، په منځ کي راځي لـکـه : [ سئلت ] او پـه پـای کـي راځـي لـکـه : [ جآء ] .

د همزې حکمونه :- همزة څو حکمونه لري چي ځیني یې په لاندي ډول دي :-

**۱:- حذف**: حذف و دې ته وایې چـي همزة له منځه ولاړه سي لکه : [ اَعِدُ ] چـي په اصل کي [ ءَاَعِدُ ] یعني دوې همزې وې خو

د صرفي قـانـون لـمـخي یـوه هـمـزة حـذف سـوه .

**۲:- تسهیل** : تسهیل و دې ته وایې چي همزة دهمزې او د ماقبل د حرکت څخه د پیداکېدونکې حرف تر منځ وي مثلاً زور څخه

پیداکېدونکئ توری الف دئ او د پېښ څخه پیداکېدونکئ توری واو دئ او د زېر څخه پیداکېدونکئ توري یاء ده لکه: ﴿ ءَاۡعۡجَمِیٌّ ﴾.

**۳:- ابدال** : ابـدال دې تـه وایې چـي هـمـزة د علت په تـوري ﴿ حرف مده ﴾ سره بـدلـه سـي لـکـه: ﴿ ءَامن، إِيمَـٰنًا ، ٱؤۡتُمِنَ ﴾ .

د همزې او الف توپیر : الف هغه توری دئ چي تل وړغندی لرونکئ وي او بېله ژب بندئ ادا کیږي او همزة هغه توری دئ چي حرکت قبلوي خـو کـوم وخت چي ساکن سي د ادا پرمهال بېله ژب بندئ نه ادا کیږي .

## ( همزة په اعتبار دمحل )

همزة په اعتبار د محل پر دوه قسمه ده چي په لاندي ډول ده:-

**۱:- همزة اصلي ۲:- همزة زائده.**

**۱:- همزة اصلي** : هغه همزة ده چي په مقابل د ( ف ، ع ، ل ) راغلې وي ، لکه : ( امر ، سآل ، قرآ ) .

**۲:- همزة زائده** :هغه همزة ده چي په مقابل د( ف ،ع ، ل)کي نه وي راغلې، لکه : ( اکرم ) کَرَمَ اصلي حروف دي او همزة زائده راغلې ده .

## ( همزة په تفصیلي ډول )

همزة پـه تفصیلي ډول پر ۵ قـسـمـه ده :-

**۱:-** چي دواړه همزې متحرکي قطعي وي ، لکه :( ءانزل ) .

حکم یې : باید تسهیل په کښي وکړه سي .

**۲:-** چي دواړه همزې متحرکي وي چـي اولـه یـې متحرکه قطعي او دوهمه یې متحرکه وصلي وي ، لکـه:( ءاستکبرت ، ءاطلع ) .

حکم یې: بـــایـــد حـــذف اجـــرا ســي .

**۳:-** چي اوله همزة متحرکه قطعي او دوهمه یې غیر متحرکه وي ، لکه :( ءآمن ، ءایمان ) نو ویل یې داسي دي (آمـن ، ایمان) .

حکم: باید حـذف او ابـدال اجـرا سـي .

**۴:-** چي دواړه متحرکه وي اوله همزة قطعي او دوهمه همزة وصلي وي، لکه:( ءالله ، ءالئٰن) نو ویل یې داسي دي( الله ، اٰلئٰن ) .

حکم یې: تـسـهـیـل او ابدال بایـد وسي .

**۵:-** چي اوله همزة متحرکه وصلي او دوهمه همزة غیر متحرکه وي ، لکه : ( رءایتموني ) .

حکم: باید حـذف او ابـدال اجـرا سي .

## ( های ضمیر )

**های ضمیر**:- هغه هاء ته ویل کیږي چـي نوموړي څلور شرطه پـه کـښـي داخـل وي لـکه:-

**۱:-**نوموړې ها به د کلمې په اخر کي موجوده وي ، په مینځ یا د کلمې په سر کي به نه وي.

**۲:-**نوموړې هابه د مذکر ها یي د مونث ها به نه وي .

**۳:-** نوموړې ها بـه پـر اصـلي حـروفـو نـه وي راغلې ( زائده ) بـــه وي .

**۴:-**نوموړې ها به په ماقبل کې مرجع ولري يعني يوشي ته به راجع کيږي .

د های ضمير لپاره څلور قواعد موجود دي ، چي دوه قواعد د حرکت په هکله دي او دوه قواعد نور د صلې په هکله دي:-

**۱:-** که چيري د های ضمير څخه مخکې کسره يا يايي ساکنه وه نو های ضمير مکسوره لوستل کيږي .

لکه :- ( بِهِ اليهِ ) مگر د دې قاعدې څخه څلور ځايونه مستثٰی دي ، چي په دوو کلمو کي مضمومه لوستل کيږي او په دوو کلمو کي ساکنه لوستل کيږي ، په کومو کلمو کي چي مضمومه لوستل کيږي هغه دا دي.

**۱:** ( وما انسٰنيهُ )په سورة الکهف کي ۲: ( عليهُ الله ) په سورة الفتح کي .

هغه ځايونه چي ساکنه په کښي لوستل کيږي ، ۳: ( ارجه )دوه ځايه په سورت اعراف کي ۴: او ( فالقه )په سورت النمل کي.

**۲ قاعده:-** که د های ضمير مخکي نه کسره وه او نه يايی ساکنه وه نوموړې ها مضمومه لوستل کيږي ، لکه:( اخاهُ ، رآيتموهُ )

مگر د دې قاعدې څخه يوه کلمه مستثٰی ده چي په هغه کي مکسوره لوستل کيږي هغه دا ده( ويتقه ) په سورت النو رکي .

**۳ قاعده:-** که چيري د های ضمير مخکي او وروسته حرکت وو نو په های ضمير کي صله کيږي که يې ماقبل مضموم ؤ نو صله د واو سره کيږي او که يې ماقبل مکسور ؤ نو صله د يا سره کيږي ، لکه ( امره الی الله بوجهه سؤء العذاب )مگر د دې قاعدې څخه هم يوه کلمه مستثٰی ده چي هغه ( يرضه لکم ) په سورة الزمر کي .

**۴ قاعده:-** که د های ضمير مخکي او وروسته دواړه ساکن وه يا يې وروسته ساکن موجود ؤ نوپه دې دريو صورتونو کي صله نه کيږي ، لکه ( منه الماء ، يعلمه الکتاب ، منه ايت ) مگر يوه کلمه چي ( فيه مهانا ) ده د دې قاعدې څخه مستثٰی ده .

## ( قطع )

**قطعه:-** په لغات کي پرې کولو ته وايي ، او د تجويد په اصطلاح کي د تلاوت ختمولو ته قطعه وايي .

د وقف او قطعي ترمنځ فرق دا دی چي د وقف وروسته د تلاوت اراده موجوده ده ، او په قطعه کي وروسته اراده موجوده نه وي ، نو قطع داسي ځای کول پکار دي چي سورة ختمه سي يا په سورت کي يو واقعه ختمه سي .

## ( په قرآن الکريم کي د هجاء د توروشمېر )

د قرآن الکريم ټوله حروف درې سوه درويشت زره ، شپږ سوه ، يو اويا حرفه دي (۳۲۳٦۷۱).[9]

د ( الف ) حرف ( ۴۸۸۷۲ ) ځلي په قرانکريم کي راغلی دی

د ( ب ) حرف ( ۱۱۲۲۸ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ت ) حرف ( ۱۱۱۹ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ث ) حرف ( ۱۲۷۶ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ج ) حرف ( ۳۲۷۳ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ح ) حرف ( ۹۷۳ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( خ ) حرف ( ۲۴۱٦ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( د ) حرف ( ۵٦۴۲ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ذ ) حرف ( ۴٦۹۷ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ر ) حرف ( ۱۱۷۹۳ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( ز ) حرف ( ۱۵۹۰ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د ( س ) حرف ( ۵۸۹۱ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د( ش ) حرف ( ۲۲۱۵۳ ) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

د( ص ) حرف (۲۰۱۳) ځلي په قرآنکريم کي راغلی دی

9: وجميع حروف القرآن ثلاثمائة ألف حرف وثلاثة وعشرون ألف حرف وستمائة حرف وأحد وسبعون حرفاً. الاتقان ج : ۱ ص : ۷۹

د( ض ) حرف ( ۱۶۲۰۷ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ظ ) حرف ( ۸۴۳ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( غ ) حرف ( ۲۲۰۸ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ق ) حرف ( ۶۱۸۱۳ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ل ) حرف ( ۳۴۳۲ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ن ) حرف ( ۲۶۵۶۰ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د( هـ ) حرف ( ۹۱۷۰ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ي ) حرف (۲۵۹۱۹) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ط ) حرف (۱۲۷۴) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ع ) حرف ( ۹۲۰۰ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د( ف ) حرف ( ۸۴۹۹ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( ك ) حرف (۹۵۲۲) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( م ) حرف ( ۳۶۵۳۵ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( و ) حرف ( ۲۵۵۳۶ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

د ( لا ) حرف ( ۳۷۲۰ ) ځلي په قرآنکریم کي راغلی دی

## ( په قرآن الکریم کي حرکات ، مدونه ، شدونه... )

د قرانکریم ټوله زورونه ( ۱۳۰۳۶۰ ) دي

د قرآنکریم ټوله پېښونه ( ٤٢٢٧٦ ) دي

د قرآنکریم ټوله ټکي ( ١٥٠٥٦٤ ) دي

د قرآنکریم ټول منفصل مدونه ( ۳۰۱۵ ) دي

د قرآنکریم ټوله زېرونه ( ٥١٢٧٦ ) دي

د قرآنکریم ټوله شدونه ( ۲۴۶۹۷ ) دي

د قرآنکریم ټوله متصل مدونه ( ۲۱۰۱ ) دي

د قرآنکریم ټوله وړغندي ( ۶۲۴۶۲ ) دي

## ( مشهور قرآءتونه )

د قراءة لپاره يو رکن دادئ چي په سند رسېدلی قراءة به وي اوس خبره داده چي په سند رسېدلي قراءتونه کوم دي ؟

جواب دا دئ چي دا خبره يوه داسي خبره ده چي علماء کرام يې په اړه په يوه خوله نه دي بلکي ځني علماء کرام په دې آند دي چي مشهور قرآءتونه اوه دي ددې اوو قرآءتونه پرته پربله طريقه باندي تلاوت کول نه دي روا ځيني علماء په دې آند دي چي په سند رسېدلي قراءتو نه اوه نه دي بلکي تر اوو زيات دي او اوه په دې وجه مشهور سوي دي چي علامه شاطبي رحمة الله عليه جمعه کړي دي په هر صورت د ځينو مشهور قراءتونو معلومات رانقلوو تر څو په منځ کي يې هغه قراءة معلوم سي چي موږ يې پر لاره روان يو هغه ډله علماء چي مشهور قاريان اوه ګڼي هغه يې نومونه پدې ډول بيانوي :

## ( اووه مشهور قاريان )

۱:- عبد الله بن كثير المكي الداري رحمة الله عليه .

۲:- نافع بن عبدالرحمان بن أبي نعيم المدني رحمة الله عليه .

۳:- عبد الله بن عامر الشامي رحمة الله عليه .

۴:- أبوعمروزبان بن العلاء بن عمار البصري رحمة الله عليه.

۵:- عاصم بن ابي النجودالاسدي رحمة الله عليه.

٦:- حمزة بن حبيب الزيات رحمة الله عليه .

۷- ابوالحسن علي بن حمزةالكسائي النحوي رحمة الله عليه .

## ( عبد الله بن كثير المكي الداري )

عبد الله بن كثير المكي الداري رحمة الله عليه د اصحابانو په لړ کي د حضرت انس بن مالک ﷺ ، عبدالله بن زبير ﷺ او ابوايوب انصاري ﷺ سره ليدلي دي د ده مبارک قراءة په مکة مکرمة کي زيات مشهور دئ او په ۱۲۰ هـ سنه کي وفات سوی دئ .
کوم قاريان چي دده څخه يې روايت کړی دئ بزي او قنبل زيات پکښي مشهور دي .

## (نافع بن عبدالرحمن بن أبي نعيم المدني )

نافع بن عبدالرحمان بن أبي نعيم المدني په خپله زمانه کي د اوياوو داسي تابعينوڅخه استفاده کړې ده چي هغوی حضرت ابي بن کعب ﷺ ،حضرت ابوهريرةﷺ او حضرت عبدالله بن عباسﷺ شاګردان وه د دوئ مبارکانو قراءة په مدينه منوره کي زيات مشهور وو نوموړي په ۱٦۹ هـ سنه کي وفات سوی دئ ، د يادوني وړده چي د ده د قراءة په راويانو کي مشهور ابوموسیٰ قالون او ابوسعيد ورش وه ابوموسیٰ قالون په ۲۲۰ هـ سنه کي وفات سوی دئ او ابوسعيد ورش په ۱۹۷ هـ سنه کي وفات سوی دئ .

## ( عبد الله بن عامر الشامي )

عبد الله بن عامر الشامي رحمة الله عليه د اصحابانو مبارکانو په لړ کي حضرت نعمان بن بشيرﷺ او حضرت واثلة بن اسقعﷺ ليدلي وه نوموړي عالم د قراءة په علم کي د حضرت مغيرة بن شهاب مخزومي رحمة الله عليه څخه زده کړي ،کړي دي د ده قراءة د شام په سيمه کي ډېر مشهور دئ او په ۱۱۸ هـ سنه کي وفات سوی دئ ، د هغه کسانو په لړ کي چي د ده څخه يې د قراءة روايتونه کړي دي هشام اوزکوان نومي قاريان مشهور دي .

## (أبو عمرو زبان بن العلاء بن عمار البصري )

أبو عمرو زبان بن العلاء بن عمار البصري د حضرت سعيد بن جبير رحمة الله په واسطه د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ او حضرت ابی بن کعبﷺ څخه د قراءة په ځانګه کي زده کړي کړي دي، د نوموړي عالم قراءة په بصره کي زيات مشهور دئ او په ١٤٥ هـ سنه کي وفات سوي دئ ، د ده د قراءة په راويت کونکو کي ابوعمر الدوري او ابوشعيب سوسي رحمة الله عليهما نوموتي کسان دي ،ابوعمر الدوري رحمة الله عليه په ٢٤٦ هـ سنه کي او ابوشيعب سوسي رحمة الله عليه په ٢٦١ هـ سنه کي وفات سوی دئ.

## ( عاصم بن ابي النجودالاسدي )

عاصم بن ابي النجودالاسدي د حضرت زر بن حبيش رحمة الله عليه په واسطه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه د قراءة په ځانګه کي زده کړي ،کړي دي همدا ډول يې د ابو عبدالرحمٰن سلمي رحمة الله عليه په واسطه د حضرت علي ﷺ څخه قرانکريم زده کړی دئ د نوموړي عالم کنية نوم ابوبکر دئ ، د لوړو تابعينو څخه دئ د اصحابانو په لړ کي يې د ابي رمثة رفاعة التميميﷺ او حارث بن حسان البکريﷺ سره ليدلي دي ده مبارک د دغه دواړو اصحابانو څخه يو ، يو حديث رانقل کړی دئ چي د لومړی صحابي حديث يې مسند امام احمد بن حنبل رانقل کړی او ددوهم صحابي حديث يې سنن ترمذي رانقل کړی دئ .
حضرت عاصم رحمة الله عليه په خپله زمانه کي يو لوی عالم ؤ، سپېڅلي او د تقوای څښتن وو ښه بيلګه يې د اده چي عبدالله بن **احمد بن حنبل فرمايي:** ما د خپل پلار احمد بن حنبل څخه وپوښتل چي عاصم څنګه عالم دئ ؟ پلار په ځواب کي راته وويل :

غوره ، صالح او ثقة انسان دئ بیا مي ترې وپوښتل چي کوم قراءة دي خوښیږي ؟ پلار په ځواب کي راته وویل : دمدینه والو قراءة مي خوښ دئ بیا مي ورته وویل : که هغه نه وو ؟ پلار په ځواب کي راته وویل : د عاصم قراءة غوره دئ .

حضرت عاصم بن ابي النجود رحمة الله علیه په ۱۲۸ هـ سنه کي د دې فاني نړی څخه دشام په سیمه کي سترګي پټي کړي دي د ځینو په آند د ده وفات په کوفه کي سوی دئ .

ډېرو کسانو دده څخه روایتونه کړي دي خو په ټولو کي نوموړي روایت کونکی حفص بن سلیمان او ابوبکر شعبة بن عیاش رحمة الله علیهما دي ، حضرت حفص بن سلیمان په ۱۸۰ هـ سنه کي وفات سوی دئ او حضرت شعبة بن عیاش په ۱۹۳ هـ سنه کي وفات سوی دئ .

## ( حمزة بن حبیب الزیات (رح) )

حمزة بن حبیب الزیات د نوموتو قاریانو د ډلي څخه دئ نوموړي د سلیمان اعمش څخه ، سلیمان اعمش بیا د یحیی بن وثاب څخه ، یحیی بن وثاب بیا د زر بن حبیش څخه زده ، زر بن حبیش د حضرت عثمانؓ ، حضرت عليؓ او حضرت عبدالله بن مسعودؓ څخه د قراءة په ځانګه کي لاسته راوړني کړي دي .

د ده د قراءة په روایت کونکو کي مشهور خلف بن هشام او خلاد بن خالد دي ، خلف بن هشام په ۱۸۸ هـ کي او خلاد بن خالد په ۲۲۰ هـ سنه کي وفات سوي دي .

## ( ابوالحسن علي بن حمزة الکسائي النحوي )

ابو الحسن علي بن حمزة الکسائي النحوي په ۱۸۹ هـ سنه کي وفات سوی دئ قراءة یې د کوفې په سیمه کي زیات مشهور وو د ده دقراءة په روایت کونکو کي ابو الحارث مروزی او ابو عمر الدوري رحمة الله علیهما زیات مشهور دي .

**یادونه** : هغه علماؤ چي قراءتونه یوازي اوه نه بولي بلکي په دې آند دي چي د دغه اوو مشهورو قراءتونو پرته نور قراءتونه هم سته درې قاریان یې نور هم رانقل کړي دي چي د لاندي قاریانو څخه عبارت دي :-

**لومړی** : یعقوب بن اسحاق خضرمي رحمة الله علیه چي د سلام بن سلیمان الطویل څخه یې د قراءة په ځانګه کي زده کړي کړي دي او هغه بیا دعاصم او ابو عمر رحمهما الله څخه زده کړي کړي دي او په کال ۲۲۵ هـ کي وفات سوی دئ .

**دوهم** : خلف بن هشام رحمة الله علیه چي د حمزة بن حبیب الزیات تر عنوان لاندي یې بیان وسو .

**دریم** : ابوجعفر یزید بن القعقاع رحمة الله علیه دئ چي د حضرت عبدالله بن عباسؓ ، حضرت ابوهریرةؓ او حضرت ابی بن کعبؓ څخه یې زده کړي کړي دي او په کال ۱۳۰ هـ کي وفات سوی دئ ، قراءة یې په مدینه منوره کي دود وو .

د ځینو په آند مشهور قراءتونه څوارلس دي چي لس یې پور ته ذکر سوه او څلور یې نور هم ذکر کړي دي چي نومونه یې په لاندي ډول دي :-

**لومړی**:حسن بصري رحمة الله علیه چي نوموتی تابعي دی، په کال ۱۱۰هـ کي وفات سوی دی او قرءة یې په بصره کي مشهور دئ.

**دوهم** : محمد بن عبدالرحمٰن ابن محیص رحمه الله چي د حضرت مجاهد رحمه الله شاګرد وو او د ابو عمرو رحمه الله علیه استاذ وو او په کال ۱۲۳هـ کي وفات سوی دئ قراءة یې په مکه مکرمة کي مشهور دئ .

**دریم** : یحییٰ بن مبارك یزیدي رحمه الله دئ چي دحمزه او ابوعمرو رحمهما الله څخه یې زده کړي ،کړي وې او په کال ۲۰۲ هـ کي وفات سوی دئ .

**څلورم** : ابو الفرج محمد بن احمد شنبوري رحمه الله علیه دئ چي د ابن شنبوري رحمه الله علیه څخه یې زده کړي ، کړي دي او په کال ۳۸۸ هـ کي وفات سوی دئ .

په هر صورت کي په دغه څوارلس قراءتونو کي لومړني لس مشهور دي او د دې جوګه دي چي تقلید یې وسي او پاته څلور قراءتونه شاذ دي .

## ( د قاري یا مقرء تعریف )

قاري په لغت کي د لوستونکي په معنٰی دئ او د تجوید په اصطلاح قاري یا مقرء و هغه چاته ویل کیږي چي د تجوید د قانون لمخي قرآنکریم په صحیح طریقه باندي ووایي او د تجوید پر اصولو باندي هم بر لاسي ولري او دقراءة سلسله دپورتنیو ذکر سوو لارو څخه رسول الله ﷺ ته رسېدلې وي .

## ( دقاري ډولونه )

قاري پر دوه ډوله دئ چي د لاندي ډولونو څخه عبارت دي :

**۱ : مبتدي  ۲ : منتهي**

**مبتدي قاري** : د هغه قاري څخه عبارت دئ چي د یوه څخه تر دریو قرائتونو پوري یې زده وي .

**منتهي قاري** : د هغه قاري څخه عبارت دئ چي د متواترو قرائتونو په لړ کي یې تر دریو زیات قرائتونه زده وي .

## ( د صحیح قرآءة رکنونه )

د صحیح قرآءة لپاره درې رکنونه دي کوم څوک چي نوموړي درې رکنونه پر ځای کړي قرآءة یې صحیح دئ او که چا پر ځای نه کړه نو قرآءة یې درست نه دئ عمل نه دئ په روا .

**لومړی رکن** : د عربي لغتو دیوې منل سوي او مشهوري طریقې سره به تلاوت برابر وي که څه هم هغه طریقه ضعیفه وي .

**دوهم رکن** : قراءة به د هغه رسم سره برابر وي چي د حضرت عثمان ﷺ څخه رانقل سوئ دئ یا په بل عبارت :-

درسم خط عثماني سره به برابر وي .

**دریم رکن** : د قراءة سند به په تواتر سره د رسول الله ﷺ څخه رانقل سوی وي .

## ( د قرآنکریم دویلو مرتبې )

د قرآنکریم د تلاوت مرتبې درې دي چي د لاندینیو مرتبو څخه عبارت دي :-

**۱-ترتیل ، ۲-تدویر ، ۳-حدر** .[10]

**۱-ترتیل** : نوموړې هغه مرتبه ده چي تلاوت په ښه ا رامتیا سره تر سره سي ، سره له دې چي په معنٰی کي یې هم فکر وسي او

10 : للقرآءة ثلاث مراتب : الترتیل ، والتدویر ، والحدر .

د تجوید ټولي قاعدې هم ورسره رعـایـت سي همدا مـرتـبـه تر ټولو ښه مـرتبه ده ځکه الله ﷻ د همدې مرتبې امر کړئ دئ.[11]

**۲-تدویر**: دا هغه مـرتـبـه ده چـي نه ډېره کـراره ده اونه هم ډېره چابکه ده البته د تجوید قواعدي پکښې مراعاته وي نومورې مرتبه په غوره والي کي تـرتـیـل تـه نـژدې ده .[12]

**۳-حدر**: نومورې مرتبه د تلاوت تر ټولو چابکه مرتبه ده البته د تجوید ټـولي قاعـدې بـه ورسـره مراعـاته وي .[13]

پاته دي نه وي چي په پورتنیو ټولو مرتبو سره تلاوت کول جائز دئ مګر لومړی مرتبه تر ټولو غوره مرتبه ده .[14]

**یادونه**: ځینو علماؤ څلورمه مرتبه د تحقیق په نامه هم ښودلې ده نومورې علماء زیاتوي چي دا داسي مرتبه ده چي په ارامـتیا کي تـر تـرتـیـل هم پورته ده دوئ دغه مرتبه د شاګردانو د تعلیم لپاره غوره ګڼلې ده خو غوره خبره داده چي پرهېز څني وسـي ځکه پـه هـمـدې مـرتبه کي د دې وېـره ده چي افـراط بـه رامنځته سي د زيـات افـراط لـه امـلـه به غـلطي رامـنـځـتـه سي .[15]

## ( په تلاوت کي دآواز ښایست )

څرنګه چي په معاصر وخت کي په ښکلي آواز د تلاوت د لـهـجـو بـازار بـیـخـي زیات تود دئ ډېر خلک په دې موخه ډول ، ډول تلاوتونه اوري چي پر ښکلي آواز یې خوند واخلي د قرآن وحقیقت ته یې بیخي پام نه وي په همدې وجه باید موږ دې ته ځیر سو چي د تلاوت د اورېدلو څخه موخه ښکـلی آواز نـه بلکي د قرآن الفاظو په صحیح ډول اورېدل دي که څه هم ښکلی آواز په تلاوت کي غوره رول لري او نا جائز هم نه دئ بلکي رسول الله ﷺ یې امر هم کړئ دئ او فرمایي :- اقرؤالقران بلحون العرب واصواتها واياكم ولحون اهل العشق ولحون اهل الكتابين وسيجئ بعدي قوم يرجعون بالقران ترجيع الغناء والنوح لايجاوزحناجرهم مفتونة قلوبهم و قلوب الذين يعجبهم شانهم . (رواه البيهقي)

**ژباړه**: قرآن د عربو په لهجو او په ښکلو آوازو د دوي ولولئ، د عشق د څښتنانو او د اهل کتابو د لهجو څخه ځان وساتئ ژر دئ چي زما څخه وروسته به یوقوم ( ډله ) راسي چي دوئ به قرآن د سرود ( ترنم ) اوسندرزیو ژړاو په ډول لولي اوقرانکریم د دوئ د زړونو څخه نه شوه کیږي دنومړو کسانوزړونه به په فتنو کښې مبتلاوي اوهمدا ډول هغه کسان چي د دوئ دا ډول تمثیل خوښوي.

په پورتني حدیث کي رسول الله ﷺ امر کړی دئ چي تاسو د قرانکریم تلاوت د عربو د ښکلو آوازنو په څېر وکړئ داچي د عـربـو ښکلي آوازونه څشي دي په اړه یې یو عالم فرمایي : مراد د ښکلو آوازنو څخه د قرانکریم داسي تلاوت دئ چـي پـر خـپـله سلیـقـه او طـبـعـه بـرابـر وي یـعـنـي نـه کـوم زیـادت او نــــه کــمــي پــکــښـــي وي .

دا چي رسول الله ﷺ د کومو آوازنو منعه کړې ده هغه آوازونه دي چي دسندرو سره ورته وي یعني هغه مقامونه په تـلاوت کـي رعـایـتـول کـوم چـي د موسیقي په علم پوري اړه لري .

---

11 : اما الترتيل : فهو قرآءة القرآن الكريم بتؤده وطمانينة مع تدبر المعاني ومراعاة احكام التجويد ، وهذه المرتبة هي افضل المراتب الثلاث حيث نزل بها القرآن الكريم والله سبحانه وتعالي امر لنبيه بها فقال : ﴿ وَرَتِّلِ ٱلْقُرْءَانَ تَرْتِيلاً ﴾ سورة المزل الاية ٤ . غاية المريد ص : ٢٠ ، البرهان في التجويد القرآن للشيخ محمد الصادق قمحاوي ص : ٦ .

12 :اما التدوير : فهو قرآءة القرانكريم بحالة متوسطة بين الاطمنان والسرعة مع مراعاة الاحكام ، وهـي تلـي الترتيـل في الافضـلـية . غـايـة المـريد ص : ٢٠ .

13 : واما الحدر : فهو قرآءة القرآن الكريم بسرعة مع المحافظة علي احكام التجويد . غاية المريد ص : ٢٠ .

14 : وهذه المراتب كلها جائزة . غاية المريد ص : ٢٠ .

15 : وذكر بعض علماء التجويد مرتبة رابعة ، وهي مرتبة التحقيق ، وقالوا بانها اكثر تؤدة ، واشد اطمنانا من مرتبة الترتيل ، وهي التي تستحسن في مقام التعليم ، ولكن لابد ان يحترز معها من التمطيط والافراط في اشباع الحركات حتى لايتولد منها بعض الحروف ، ومن المبالغة في الغنات الي غير ذالک مما لايصح . (غاية المريد ص : ٢٠ ) ، نهاية القول المفيد للشيخ محمد مكي ص : ١٥ .

په هر صورت داسي د آواز ښکلا چي د قرانکريم تلاوت د خپلي اصلي وضعي څخه اړوي يا زيادت او نقصان پکښي پيدا کوي حرام يا مکروه دئ .

کومي طريقي چي نا جائز دي وروسته به يې ټول ډولونه راسي څکه په مخکني حديث کي يې منعي ته اشاره وسوه .

د دې تر څنګ داسي د آواز ښکلا چي د تلاوت منقوله طريقې ته کوم تاوان نه رسوي هغه جائز دئ چي د هغه ټول ډولونه به هم په خپل وار راسي .

## (په تلاوت کي نا مشروع لهجې)

| شماره | بنه | تعريف | حکم |
|---|---|---|---|
| ۱ | تمطيت | چي په حروفو کي زيادت کوي | حرام |
| ۲ | تهمين | چی د وقف په وخت کي همزة پيداکي | حرام |
| ۳ | تعويق | چي د کلمې په مينځ کي وقف وکي | حرام |
| ۴ | تحريص | چي يو حرف ئې لا نه وی پوره کړی بل شروع کړي | حرام |
| ۵ | تفخيم | چي ټول حروف پوره او ډك وائي | حرام |
| ۶ | ترقيق | چی ټول حروف باريك وائي | حرام |
| ۷ | زمزمه | د سندرو په بڼه تلاوت کول | حرام |
| ۸ | رقزه | بې ځايه ادغام کول | حرام |
| ۹ | انعنه | د ډکوالی د ډېروالي له امله د عين آواز پيداکول | حرام |
| ۱۰ | تقطع | د تلاوت پر مهال بې ځايه سکتې کول | حرام |
| ۱۱ | الجاز | حروف مده له منځه وړل | حرام |
| ۱۲ | تعجيل | دومره چابک تلاوت کول چي له امله يې حروف له منځه ولاړسي | حرام |
| ۱۳ | تمفيش | د حرکاتو نامعلومه اداکول | مکروه |
| ۱۴ | تمزيخ | د تلاوت پر مهال خوله ژوول | مکروه |
| ۱۵ | تتميد | د مد آواز د پوزي لوري ته بيول | مکروه |
| ۱۶ | ترخص | په آواز کي شرنګی کول | مکروه |
| ۱۷ | ترعيد | د مد کولو پر مهال آواز ښورول | مکروه |
| ۱۸ | تتعيد | لهجې توپيرول يعني د يوې لهجې څخه بلي لهجې ته تلل | مکروه |
| ۱۹ | تحريز | په وېرجن ډول تلاوت کول | مکروه |
| ۲۰ | ترجيح | د تلاوت کولو پر مهال آواز د پوزي لوري ته بيول | مکروه |
| ۲۱ | وحبه | ډېر چابک تلاوت کول چي قواعدي ترې پاته سي | مکروه |
| ۲۲ | همهمه | مخفف توری مشدد کول يا مشدد توری مخفف کول | مکروه |

| ۲۳ | لينيه | د لينو تورو پرته نور تول حروف نرم ويل | مکروه |
|---|---|---|---|
| ۲۴ | نفره | د جنګ په څېر تلاوت کول | مکروه |
| ۲۵ | عدب | داسي تلاوت کول چي پيل او پاى يې نه معلوميږي | مکروه |
| ۲۶ | قلقلة | د قلقلې د تورو پرته پر نورو تورو قلقله کول | مکروه |
| ۲۷ | زيادت | مد تر خپلي اندازې زياتول | مکروه |
| ۲۸ | تطويل | حرکتونه تر خپلي اندازې زيات کشول | مکروه |
| ۲۹ | نقص | په نا معلوم ډول حرکات اداکول | مکروه |
| ۳۰ | تخليت | د يوه حرف څخه بل حرف ته ميل کول | مکروه |

## ( غوره لهجې )

**١:- ترتيل التلاوت** : منځ مهالی تلاوت کول چي نه ډېر چابک وي او نه ډېر کرار وي .

**٢:- تجويد التلاوت**: چي هر حرف د خپلو مخرجونو او صفتونو سره مل اداکوی .

**٣:- تبيين التلاوت**: چي اورېدونکي ته په تلاوت کي د تجويد قاعدې ښيي .

**۴:- ترسيل التلاوت**: په داسي بڼه تلاوت کوي چي حروف ټول په خپلو مخرجونو کي ادا کوي او د صفتونو رعايت يې کوي - - د لحن څخه ځان ژغوري . -

**۵:- تحسين التلاوت**: حروف په خپلو مخرجونو کي ادا کوي د آواز د ښکلا سره مل يې د صفتونو رعايت هم کوي .

**٦:- توقير التلاوت**: د مخرجونو او صفتونو د رعايت ترڅنګ يې قراني عزت هم په زړه کي وي .

# تمت بالخير

ستاسو د دعاء په هيله

قاري احمد ياسير ((لودين))